ګڼه ۱۰۹
کال ۱۳۴۷



# ددې ګڼې مضامین





دکندهار د احمدشاه بابا دلیسې د بیالوژی لابراتوار چې د زده کوونکو دتجربو دپاره مجهز وسایل لري

# اصلاحات لومړی
## له ځانه شروع کیږی

څرنګه چې زموږ ګران هیواد افغانستان د مخ پر انکشاف روانو هیوادو څخه دی نو ځکه زموږ د فردی او اجتماعی ژوند په چارو کی ډېری نېمګړتیاوی لیدل کیږی.

که سړی په خپل شاوخوا کی سترګی ولغړوی دغه نېمګړتیاوی په څرګند ډول لیدل کیږی لکه څرنګه چی وینو ټول طبقات هم په خصوصی ډول هم په شخصی ژوند کی او هم په عمومی ډول د اجتماعی چارو په هکله یو شکایت او تکلیف لری او د هری ژبی څخه د دغو نقایصو د رفع کیدو شکایتونه پورته دی.

که رښتیا ووایم دغه تکلیفونه ودې اندازې ته رسیدلی دی چی واقعاً پر خلکو باندی د ژوند ساحه تر ډېره حده تنګه او ده یو ډول زړه و یلونکی او روحی عذاب سره مخامخ دی، نه له چا څخه پوره حق اخستل کیږی او نه څوک په اجتماعی حقوقو او آدابو پابندی لری خو له بده مرغه په دغه توره تیاره کی هر څوک د اوایی او یا هیله کوی چی باید ټول له خلک په خپل شخصی او اجتماعی ژوند کی خپل واجبات د یوه وظیفه شناس غړی په توګه سرته ورسوی.

خو کله چی د دغو خیالی رؤیاو په وخت کی وجدانی الهامات ده ته د شخصی وجایبو او اجتماعی فرایضو تلقین وکړی بیا نو سمدستی د خپلو اعمالو او کړو لپاره بیل، بیل دلایل او راز راز بهانی راپورته کړی او که نور هر څه پرو دریږی نو دا حکم له ځان سره وکړی چی په دا یوه باندی به جامعه پر مخ ولاړه نسی (یا په یوه ګل نه پسرلی کیږی) او نه زما د غیر اجتماعی اعمالو په اثر به دغه لویه جامعه دومره متاثره سی خو نور خلک باید د اجتماعی مصالحو په ټولو قوانینو او آدابو پابندوی او دغه ایثار او فدا کاری باید لومړی د بل له خوا شروع سی څو ترهاوار راوړسیږی البته بیا به نو زه هم پخپل وار د دغو وجایبو په ادا کولو شروع وکړم.

عمر په دغه انتظار کی تیرشو اجتماع په خپلو بی عدالتیو کی سوځی خو هیڅوا پدغه ایثار باندی شروع و نکړه.

زه دا یقین لرم تر څو دغه حس زموږ پر افکارو باندی حکم چلوی موږ به د پخوا په شان د خپلو ناقصو اعمالو قربانی یو او هیڅ د پیشرفت او ارتقا هیله به نه را څخه کیږی او دغه شخصی فکر او ځان ځانی حس نه یوازی موږ پر مخ نسی بیولای بلکی موږ به دغه اوسنی حال څخه نور هم ترشا بیایی.



د پښتو پر شفاهي کيسو يوه مقدمه

ليکونکی : م [عطائی]

د موسی جان او ګلمکۍ داستان

# د داستان ليکنی په هنداره کی

په روانه مقاله کی به موږ د « موسی جان او ګلمکۍ» شفاهی داستان تر ادبی اصولو لاندی سره وسپړو او په يوه ريالستيك نظر به دهغه ارزښت وګورو.

تر هغه ځايه چی موږ نن د نړۍ دمترقی ادبياتو سره اشناسوی يو او بيا دهغو ادبياتو په لمن کی دداستان ليکنی فن مو پېژندلی دی نو په پوره زړه دا ويلای سو چی زموږ په شفاهی کيسو کی د «موسی جان او ګلمکۍ» داستان دادبياتو له نوی روشو نوسره کاملا برابر دی او که نن دا په يوه بله ژبه ترجمه شی او د نړۍ يوه نخبه داستان ليکونکی ته وربښکاره سی نو هغه به فکر وکړی چی دا د نوی عصر په روحيه او د اجتماعی شرايطو په ځوله کم او کيف بلديو ليکوال ليکلی دی.

دادی دا داستان به تر کوچنيو عناوينو لاندی پدې ډول وڅېړو:-

د داستان قهرمان

او

کرکټرونه

موسی جان او ګلمکی د داستان د هېرو (قهرمان) او هېروينی (قهرمانی) په حيث.

ولی جان د دريم هېرو په حيث يعنی دا کيسه ددوو په عوض درې هېروګان لری.

سهېل خان منفی کرکټر

مېرولی او بيبۍ دوه تاندهٔ زلمی کرکټرونه.

تا نو مبارزه او انتقام جوړه پېغله، چی د داستان د زبده کرکټر په حيث د کيسی خاتمه په توره پای ته رسوی.

پړانګی د مېرولی آس چی د داستان په کرکټرانو کی ځانته برخه لری.

د داستان فضا

کليوالی ماحول په عادی او طبيعی ډول دېکور سوی شنه پټی او زرغونی ځمکی، بزګری ژوند، خانخانی، کلاوی او د ملوك الطوايفی عيش منظرې په کامله سادګی داستان په ځان کی پر له خر ځوی.

د داستان موضوع

مېراث او ځمکه دداستان دماجرا ؤ تخلفونکی دی.

د کليوالی تاجر تر مرګه وروسته کليوالی خان په زور د هغه لور ځان ته کښېنوی او د هغی خور هم ددې لپاره له خپل نامزاد ځخه راګرځوی چی مېراث له دې ځخه بل کورته انتقال پيدا نه کړی.

پـه دوهمه صحنه کی د لوی زمينـدار او کوچنی زميندار تـر منځ مقـابله راځی. لوی خـان کوښښ کوی چی د کوچنی زميندار ځمکه په غير مستقيم ډول د خپل ملکيت ضميمه کړی او دا وضع هغی فاجعی ته منجر کېږی چـی د کيسی

دریم قهرمان ښځینې وژل کیږی.

د داستان طرح

داستان هیڅ پیچدګی نه لری بلکی هره واقعه چې را پورته کیږی د هغې نتیجه سمدستی ورسره

ملګری وی، دعمل او عکس-العمل پر خورد ناځاپی نه وی بلکی کله چې واقعه د آغاز په حال کې وی داسې

پیشبینی کولای سی چې د هغه نتیجه څرنګه مسایلو ته منجر کیږی.

د داستان تم

په هر داستان کې تم د داستان لیکونکی هغه مقصد او غایه ده چې لوستونکی ته د داستان تر لوستلو

وروسته هغسې قضاوت ورکړی لکه د داستان جوړونکی هدف چې وی په ساده عبارت تم د داستان په

ټوله جریان کې هغه پټ فکر فکر دی چې د داستان شاته پروت وی او په خاتمه کې د لوستونکی ذهن ته کامله نتیجه وسپاری.

د موسی جان او ګلمکۍ په شفاهی داستان کې دا تم د کیسې د هری ماجرا

سره لوستونکی یا اوریدونکی ته د مثبت او منفی په منځ کې د صالح قضاوت راژوندی کوی او هغه عمیق خلګ چې اجتماعی

مسایل په کلتورکې پلټی نو د کیسې تم ئې ودې نتیجې ته رسوی چې یوه ټاکلې اجتماعی مرحله د خپلو اجتماعی او اقتصادی روابطو سره څرنګه په کیسه کې شرح سوېده.

د داستان نتیجه

دا داستان د نتیجې په لحاظ د ټولو ادبی قوانینو په تطبیق ریالستیک شپوه ښه ره نه نیسی.

هغه اساسی اصل چې د نوی ریالسم په شیوه نن په نوی ناول لیکنه کې پاللی کیږی دادی چې د داستان ټوله ماجرا به د بریالی

مبارزې په شپول کې پر له اوږی او نتیجه به ئې د صالح کرکټر په کامیابو او د منفی کرکټر په ناکامی پای ته رسیږی د «موسی

جان او ګلمکۍ» په داستان کې د ولیجان په زهرو وژل د موسی جان او ګلمکۍ مړه کېدل او د «میرولی» تاندہ باندہ مرګ

یو زړه تړونکی فاجعه ده چې د لوستونکی په زړه کې یو خروش پاځوی خو هغه وخت چې «تانو» د «سهیلی» خان سره د واده په شپه توره په توره جنګ کوی او هغه لپوه خان وژنی نو د داستان

هر لوستونکی او اوریدونکی ته تسکین وروبخښی او د داستان نتیجه د تانو په مبارزه بریالی پای رسیږی.

د موسی جان او ګلمکۍ د داستان نتیجه نه یواځې د پښتو په ټولو شفاهی داستانو کې د واقعیت بالنی

له پیروی څخه مستغنی ده بلکې که زموږ د لیکل سوی داستانو سره هم پرتله شی نو فتح به ئې په نصیب وی.



د موسی جان او ګلمکۍ د کیسې لنډیز

مخکې تردې چې دیوې
شارټ ستوری په ډول
د پښتو داشفاهی کیسه
وړاندی سی د کیسې
لنډیز به وړاندی کړو.
دا لنډیز د «هلمند د
کلتور په ساحه کې» له
اثر څخه را اقتباس
شوی دی.

نوروز او فیروز دوه وروڼه وه چې کلیوالی سوداګری ئې کوله له دوی څخه فیروز اوه داسې

ښایستی لوڼې درلودی چې هره یوه ئې د سپوږمۍ په شان ښکلې وه او په دوی کې ئې د کشری لور چې [ګلمکې]

نومېدله ، په کوچنيوالي کې ئې لا د کليوالو توجه ځانته جلب کړې وه . د فيروز ورور نوروز يو زوی درلود چې د « موسی جان» نوم ئې پر اېښی ؤ .

فيروز او نوروز يوه ورځ فيصله وکړه چې خپله خپلوی ښه سره ټينګه کړي نو داؤ چې فيروز خپله کشره لور « ګلمکۍ» خپل وراره « موسی جان » ته ورکړه .

موسی جان او ګلمکۍ پخوا تردې چې هم په يوه کور کې وه يو د بله ئې ډېر ښه سره اېښېدل، او هر کله چې لوی شول نو د مينې بوټی ئې په زړه کې ژوري ريښې وځغلولې .

پدې کلي کې يو خان مشر ؤ چې « سهيلي » نومېده. سهيلي يو شهوت پرسته خان ؤ چې ډېري ماينې ئې په کور کې کښېنولې وې او دوطن ټوله ځمکې دده وې، کليوال خلک ټوله دده بزګران وه چې دغلامانو په ډول ئې کار ځنې اخيست .

ده اورېدلي ؤ چې فيروز اکا ډېري ښايستې لوڼې لري نو هغه ؤ چې يوه ورځ ئې فيروز اکا وروغوښت او ورته وې ويل چې: زه غواړم ستا سره دوستي وکړم نو يوه لور به دې راکوې !.

فيروز اکا دده غوښتنه ومنله هغه ؤ چې د ګلمکۍ مشره خور « ببۍ» ئې سهيلي ته واده کړه .

پسله څو وخته فيروز او نوروز مړه شوه او د فيروز اکا د کور ټوله اختيار خان سهيلي په لاس کې واخيست . دا مهال چې موسی جان ځلمی سوی ؤ او ګلمکۍ هم کوچنۍ پېغله وه نو هغه څو واره د ګلمکۍ لاس ته راوړلو لپاره مرکې وکړې، خو ځکه چې د سهيلي په لاس کې اختيار ؤ نو دده ډېر ولور په غوښتنه کې ئې موسی جان په يوه او بله کاوه او هغه هم څه په لاس کې نه درلود

موسی جان هر څه وسيلې په کار واچولې خو پر سهيلي ئې څه اثر ونه کړ .

موسی جان په دباندې کې او ګلمکۍ په کور کې يو د بل په ارمان د مينې او عشق په اور کې نښتل .

موسی جان چې ځوانمرد ځلمی ؤ او دا خبره ئې پر خوا ښه نه لګېده چې ښځه ئې د بل پر کور وي، نو ځان ئې د وطنه ورک کړ او د يو بل وطن پر خوا ئې مخ ونيو. ولي جان د يو بل وطن کليوال دی او دا وطن هم د سهيلي تر خاني لاندې دی، يو کوچنی ټوکر ځمکه لري چې له دغه څخه ګذاره کړي او څرنګه چې يو مست ځوان دی نو همېشه د کليوالو ځوانانو بانډار پرده کېږي. غزلچيان ورته راځي او هره شپه دده په اوجره کې مېله جوړوي

پدې ميانځ کې يوه سړی د وليجان په ځمکه دعوه کوی دا سړی خورا شرير سړی دی او د کلي کوچني خانان هم دده پر خوا دي، دا دعوه ډېره اوږده شوه خو په کلي کې سپين ږيرو او ملکانو فيصله وکړه چې لوی خان سهيلي ته ئې واېږي هر څه چې هغه وويل دواړه خواوې به ئې قبلوي .

دعوه سهيلي ته ولاړه او کله چې د وليجان مدعي سهيلي ته موټ او رشوت ورکړ نو هغه پر وليجان د ملامتي حکم وکړ او ځمکه د وليجان څخه ولاړه .

پدې وخت کې وليجان له حالو خلاص شو ، نو فيصله ئې وکړه چې د سهيلي څخه به سخت انتقام واخلي او پدغه نيت د لي پاته شو او هره ورځ ځار کوي چې

کله به ئې پر سهیلي لاس بر سي .

یوه ورځ چې د سهیلي ماینې ټوله د سارا (صحرا) سیل ته تللي وې او په دښت کې ئې د پسرلي ګلالنده لمر ته اتڼ اچولی دی .

ولیجان موقع برابره ولیده او دښت خوا ته ئې خپل آس زین کړ او توره ئې په ملا بند پوری وځړوله .

په یوه ټوپ تر دښت پوری راغی ، هلته ئې ولیدل چې ښځې یوازې دي او شاوخوا څو ناجوړه بزګران لیري

او نژدې لمر ته غزېدلي دي نو آس ئې وروست او ښځو ته نژدې له هغه څخه کښته شو توره ئې له ملا

څخه خلاصه کړه او د دوی خوا ته ور رهي شو .

ښځې وارخطا شوې او ساتونکی ئې د بېړې وتښتېدل .

ولیجان په دوی کې وکتل او د خان کره ماینه «بېبۍ» ئې ډېره خوښه شوه نو په ډېر قوت ئې تر

مو ټه ونیوله او کش ئې کړه پر آس ئې ترشا سپره کړه ، کش... «پاته لري»

«۲»

# د آریانا د واکدارانو پخوانی سلسله

ځکه چې پر ته له آریائیانو څخه نورو بومي وګړی وهغه ځای ته پناه وړله چې همدغه بومیان تورپوستان وه .

کاوی یوسان (کیکاوس) د هغه کومك د قوت په مرسته چې د هندوکش له جنوب ( د زابلستان له خوا ) څخه ورده ورسېدی د مازندران ټوله ساحه ئې د خپل مملکت ضمیمه او په خپل مملکت کی ئې ګډه کړله او په هره علاقه کی ئې یو حکمران ټقرر کړ .



## کاوی سیاورشان

(کاوی سیاوش)

تر کاوی یوسان وروسته دی د آریانا حکمران سو دغه پاچا هم څو عمر د شمالي توریائیانو سره و جنګېدی په پای کی د دغو جګړو په ترڅ کی د اکسوس په شمال کی و وژل سو . کاوی سیاورشان د اکسوس ها خوا ته یوه کلا د «ګنګه پنامه ودانه کړه .



## کاوی هوسرا

(کیخسرو)

تر کاوی سیاورشان تر مرګ وروسته ده زوی کاوی هوسرا ( کیخسرو ) د بلخ و پاچهی ته ورسېدی . دغه پاچا هم د اوستا د لیکونو له امله او هم د اسلامی دورې د رزمي او حماسي منابعو له جهته یو معروف کرکټر دی

د توریائیانو اود هغو د حکمران (فرانګرسیانا) چې په افراسیاب مشهور دی ، د خپل پلار د خون اخیستلو موضوع په فوق العاده ډول ده پر شهرت زیات وب وکی .

کاوی هوسرا د آریائی منافعو په ساتنه کی د شمالي تورانیانو په مقابل کی ډېر هاند او کوښښ وکړ ، ده د خپلی پاچهی او مملکت په پهلوانانو کی یو جګړن روح ژوندی کی او د شمال پر تورانیانو ئې بری وموند .



## د اسپه کورنی

هغه سلسله چې تر کیخسرو وروسته په بخدی کی و سلطنت ته ورسېد . د اسپه کورنۍ د چې

ددوی د پاچهانو د نومو وروسته کلمه ئي [اسپه] ده.

✡✡✡

## اوروت اسپه

(لهراسب)

د اسپی د کورنی لومړی پاچا همدغه اوروت اسپه «لهراسب» دی چی دده رزمی نکلونه او کیسی د فردوسی په شاهنامه د لهراسب په نامه ډیری مشهوری دی.

✡✡

## ویشت اسپه

(گشتاسپ)

دی د اوروت اسپه زوی ؤ چی تر پلار وروسته د پاچهی پر تخت کښېنوست.

دغه لوی او کدار یو زړور، فاتح او غیرتمن عسکر ؤ چی دده د ژوندون تاریخ په جنگو سره شروع کیږی او په فتح سره پای ته رسیږی. دده د شهرت او نوموړتوب یو لوی سبب د زرتشتر سپنتمان بلخی (زردشت) ظهور ؤ چی دده د پاچهی په دوره کی ؤ چی ویشت اسپه ئي ښه حمایت کاوه، ویشت اسپه دخپلو اسلافو په سلسله کی ډیروخت ونه دشمال دتورانیانو سره په جگړه کی ؤ اود آریانا منافع ئي ساتله.

✡✡✡

## سپنوداتا

(اسفندیار)

دغه نوموړی د ویشت اسپه زوی ؤ، چی تر ده وروسته و سلطنت ته ورسېدی.

ده دخپل پلار په ژوندکی د شمال د باتورانیانو په جگړه کی دپلار سره همکاری کړېده.

## ترسپنوداتا

وروسته

د آریانا دپاچهانو په پخوانی سلسله کی اسلامی مؤرخینو دغه لاندنی حکمرانان یاد کړی دی.

۱. بهمن.
۲. همای.
۳. داراب.
۴. دارا.

✡✡✡

## اوگزیارتس

دغه د آریانا واکدار د آشوری د امپراطور «نینوس» سره دجنگو په سبب زیات شهرت گټلی دی.

نینوس د ۱۰۰۰ق م په شاؤ خوا کی دخپلو ډیرو لښکرو سره چی شمېر ئي دوه ملیونو سرباز انو ته رسېدی د آریانا د نیولو او ایلولو په هڅه کی روان شو.

اوگزیارتس چی د بلخ څخه ئي پر آریانا سلطنت کاوه، د څلورسوو زرو سربازانو سره ئي لومړی د خپل هیواد په لوېدیځو غرنیو سیمو کی او بیا ئي په بلخ کی د اشوریانو سره جگړه وکړه، په نتیجه کی سره له دې چی آشوریانو څه جزئی او لږ موفقیت لاس ته راوړی ؤ، بیا هم د آریانا سلطنت پر هغه پخوانی مستقل شکل باقی پاته شو.

✡✡✡

## د یونانی مؤرخ

هیرودوتس د لیك د نقطه نظره: د آریانا ستروگړی

د یونان د پخوانی مؤرخ هیرودوتس د لیکلو له رویه د آریانا د رئیسانو د پارس دهخامنشی په مهال کی څه معلومات لاس ته راتلای شی، دغه رئیسان او ستروگړی هیرودوتس په لاندی ډول یادوی.

۱. د پاکتیکیانو (پښتنو) رئیس « ارلیفت-

سپرا ئیا متر» نومېدی.

د دوی ایرغ او اسلحه لکه د آریانا د نورو قبائلو اسلحه غشی او لنډی او نوری مجبونکی اسلحی وې

۲. د باختریانو او د اسکائیانو رئیس یو سړی ؤ چې هیشنا سپ نومېدی، په جنګ کی به باختریانو د

کراستی، جګی تیش خولی پر سر کولی چې جګه به ولاړه وه او هم به ئې یو پرتوګه اغوستی او بومی اسلحی

لکه لنډه نیزه (قمه)، لینډیه او تبرزین چې (ساکاریس) ئې بولی استعمالولی.

۳. د آریائیانو (هرا-ئیان) رئیس د «دارنیس» زوی «راسی سام نیس» ؤ.

دې وګړو لوېی، لوېی لینډی او باختری اسلحی لکه لنډه نیزه او یوه مخه، یو طرفه تبرزین به ئې استعما-لول او هم ئې د کراستی جګی تېش خولی پر سر کولی.

۴. د ګنداریانو او د دادیکسیانو (تاجکانو) رئیس چې د «اردوان» زوی «ارتی فیوس» ؤ د جنګ

په مهال کی به باختریان دغسی مسلح او دغسی جامی به ئې اغوستلی.

۵. د زرنګیانو (دسیستان) د وګړو رئیس د «میګابیز» زوی «فرن دات» ؤ.

دوی به رنګه جامی او کالی اغوستل او اوږدې موزې (چکمه) به ئې په پښو کولې چې تر زنګنو به رسېدلې. دوی به لنډې او اوږدې نیزې لوړی لینډی ئې درلودې.



# بسوس

پر ختیځه سیمه باندی د سکندر د حملې او یرغل په مهال کی د باختر حکمران «بسوس» ؤ

چې د بلخ ځخه ئې پر دوی حکم چلاوه.

دغه نوموړی زمونږ د وطن د پهلوانانو، زړورو او جنګیالیو سرو ځخه ؤ.

د پارس د هخامنشی د دریم پاچا داریوش د غوښتنی په اثر د سکندر په مقابل کی د هخامنشی د لښکرو سره یو ځای شو، او

مقدونیانو ته ئې لوېی ضربې او تاوانونه ور ورسول، په پای کی داریوش قطعی ماتې وکړه وتښتېده.

بسوس د آریانا د نورو سردا-رانو په ملګری داریوش د امغان په علاقه کی وژنیو مړ ئې کړ، او بیرته پخپل وطن کی د سکندر د مقابلې د پاره چمتو سو.

سکندر څلور کاله د آریانا په خاوره کی په سختو جګړو اخته ؤ.

د بسوس د نیولو په نیت د بلخ پرخوا روان شو، او هم ئې د اکسوس وخواته لښکری واستولی، ځو په

پای کی ئې په ۳۲۹ ق م کال په ډېر زحمت او خواری دغه د آریانا زړور جنګیالی بسوس ونیو، او د سکندر په محبس کی ئې د خپل وطن د ساتنې په لار کی ځان قربان کې.



# ساتی برزانت

پر ختیځه سیمه باندی د مقدونی سکندر د یرغل په مهال کی د آریانا (هرات) حکمران «ساتی برزانت» ؤ.

دغه نوموړی هم لکه بسوس د سکندر په مقابل کی د داریوش سره د کومک په ډول د هخامنشی د لښکرو سره یو ځای شو.

هغه مهال چې داریوش مغلوب او ووژل شو، نو دغه نوموړی هرات ته راستون شو چې د سکندر د یرغل مخه ونیسی.

پاته لری

«۲»

دوست محمد [ تره کی]

# د ګرمسیر د کلتور وضع

## «دوهم فصل»

---

درانی احمدشاه بابا چی په ۱۱۶۰ هـ کال کی پاچا شو د سیستان او هلمند و شمالی او مرکزی برخو ته ئي ددرانی نامداره خانان ولېږل اود هغو ځایو دزراعتی ځمکو دملکیت فرمانونه ئي هم ورکړه چی د هغه جملی څخه ئي د نورزو، علیزو د قوم مشران او خانان شاید ګرمسیر ته هم رالېږلی وی اوددغه ځای دزراعتی ځمکو ملکیت به ئي ورکړی وی، ځکه چی د ګرمسیر اوسنی خلګ وایی چی: دا ځمکی احمدشاهی زموږ د نیکه ګانو راپاته دی او احمدشاهی خطونه ئي لرو، نو ددې څخه داسی معلومیږی چی د ګرمسیر اوسنی خلګ داحمدشاه بابا په زمانه او یا تر ده وروسته هلته ورغلی دی .

پورتنی تبصره د سیستان د تاریخ په باره کی د یونانی سکندر دزمانی څخه بیا د ابدالی احمدشاه بابا تر وخته ده چی په لنډه ول ولیکل سوه ، باید وویل سی چی پدې تبصره کی دګرمسیر نوم لږ یادسویدی اوټوله دسیستان په باره کی ؤ، سبب ئي دادی چی دمخه هم وویل سوه چی د ګرمسیر سیمه ځان ته جلا تاریخ نه لری او د پخوانی سیستان یوه برخه ده، نو دتاریخی نقطه نظره هره واقعه چی پر سیستان راغلی ده ګرمسیر پکښی شامل او د سیستان تاریخ د ګرمسیر تاریخ دی .



## شعر او ادب

دمخه تردې چی دګرمسیر دمنطقی او یا دهغه د شاؤخوا شعر او ادب ترڅېړنی لاندی ونیسو لومړی باید دشعر او ادب د کلمو په معنا او مفهوم ځان پوه او دلته ئي واضح کړم.

ادب : ادب یوه کلمه ده چی تر ننورځی د علماؤ تر بحث لاندی ده، ددری ژبی عالمان دا کلمه دری ته منسوبه وی او عربان ئي د ادب کلمه یوه عربی کلمه بولی او وایی: چی په نبوی [ص] احادیثو کی د ادب کلمه راغلی ده . دغه رنګه د ادبیاتو کلمه هم ترڅېړنی لاندی ده. یو شمېر عالمان وایی چی: اَدبیات د ادب د کلمی جمع ده مګر که دادبیات کلمه دادب د کلمې جمع وبولو نو دصرف د علم څخه مخالفت کوی . باید وویل سی چی د ادبیاتو د کلمی په باره کی هم څېړنه شروع ده او نور پدې باره کی دلته تفصیل په کار نه دی .

د ادب علم : عبارت د پېژندګلوی څخه د ښه والی یا بدوالی د نظم او نثر دی په یوه محیط کی د ادب علم په لاندنیو قاعدوی علومو مشتمل دی.

صرف، نحوه، بدیع، بیان، منطق، عروض، قافیه دادب دعلم فرعیات دی.

# تعمیرات

څرنګه چې څو قرنه د مخه د دغه محیط په خلکو کې تعمیرونه ډېر ابتدائي او د ختو وه چې په ژمي د یخه او په دوبي کې د ګرمي څخه انسانان نجات نسوای پکښې پیدا کولای. لباسونه ئې ډېر لوی د ټوکر اندازه ئې زیاته د جوړولو طرز ئې خراب او یوه جوړه کالي ډېر عمر اغوندي.

باید وویل شي چې د ګرمسېر په محیط او د هغه و جنوبي خواته په خانشین او ریګستان کې تمدن او د اجتماعي تکامل سیر بطي دی او خلک ئې هر څومره چې د شمال له خوا څخه د جنوب و خواته ځي ساده او ابتدائي ژوند لري، مګر د څو زمانې را پدېخوا دهلمند د زراعتي پروژې د انکشاف عمومي ریاست د تاسیس په نسبت په ګرمسېر کې هم تر یوې اندازې د خلکو ژوند او د فکر طرز نسبت و پخوا ته ډېر فرق کړیدی علت ئې دادی چې په ګرمسېر کې د کانال کیندل د روپشان د پل، او د سړکونو جوړول د عراده جاتو تګ او راتګ د خلکو پر ژوند تر یوې اندازې اثر واچاوه مګر بیا هم د هغه ځای عوامه طبقه ابتدائي ژوند لري بنایي چې په آینده کې فرق وکي.



# ابتدائي ښوونځي

دهلمند د ولایت په ټولو سیمو کې ابتدائي او کلیوالي ښوونځي شته او په ځینو سیمو کې لکه د بارکزو د ناوې ولسوالۍ او د ګرشک په ولسوالۍ کې منځنۍ ښوونځي هم شته. دغه رنګه د نجونو ابتدائي ښوونځي د ګرشک په منطقه کې د ډېرو کلو را پدېخوا شروع دی د ولایت مرکز دلښکرګاه په ښار کې د هلکانو لیسه او د نجونو متوسط او نورې ابتدائي ښوونځي شته.

د ګرمسېر د ولسوالۍ ابتدائي ښوونځي دهلمند د نورو ولسوالیو تر ابتدائي ښوونځیو کم نه دی. په هغه ځای کې دوې ابتدائي ښوونځي شته. لومړی ښوونځی ئې د هزارجفت دی چې شپږ صنفه لري. دوهمه ئې د درویشان ابتدائي ښوونځی دی چې دا هم شپږ صنفه لري.

د پوړنیو ښوونځیو د متعلمینو د تعلیم سویه متوسطه ده، د درس پروګرام عیني د مرکز د پروګرامو په څېر دی.



# کلیوالي ښوونځي

د ګرمسېر په هر کلي کې کلیوالي ښوونځي شته چې په هغه کې د هغه ځای د شاوخوا هلکان په درس ویلو بوخت دي. د هر کلیوالي ښوونځي د معلمینو شمېر یو یا دوه نفره اکثره ځایونه ئې درو نفر ته هم رسېږي. د معلمینو تدریس ئې اصولي صنفي شکل لري (یو معلم د صنف ټوله مضمونونه هلکانو ته درس ورکوي)

په کلیوالي ښوونځیو کې درس تر دریم صنف پورې ویل کېږي، وروسته ئې بیا که د متعلمینو عمر لږ وي هغه د ولایت مرکز لښکرګاه ته استوي او په لیسه کې ئې شاملوي یا ئې کابل ته لېږي او که ئې عمر ډېر وي وروسته تر دریم صنف خارجېږي.

د ګرمسېر د کلیوالي ښوونځیو نمونه په لاندې ډول دی.

د صفار کلیوالي ښوونځی

دمیان پښتی کلیوالی ښوونځی، د لکی کلیوالی ښوونځی، د ښادر کلیوالی ښوونځی، د بګت اولنډی کلیوالی ښوونځی.

دپورتنی کلیوالی ښوونځیو تعمیرات هم متاسفانه تکمیل نه دی اود درس ویلو کوټی ئې ډېرساده اوغیرفنی جوړې شویدی چې په ژمی کې یخ او په دوبی کې تودې دی.



## پښتوانی او اوسنی ګرمسیر

دلته دګرمسیر پښتوانی او اوسنی پرلونه د تاریخی نقطه نظره زما مقصد نه دی بلکې د هغه محیط د وسعت اوکمی، او دغه رنګه د مادی ژوند تغیرات مدنظر نیول کیږی.

د پښتوانی ګرمسیر محیط نسبت و اوسنی ګرمسیر و محیط ته وسیع او پراخ ؤ. دشمال دخوا د بست (لښکرګاه) سره د بست پرلامزرع دښت او ریګونو باندی منتهی چې اوس هم په عین ترتیب د بست د ښار سره وېش لری، دجنوب وخواته ئې خواجه علی لنډی او پلا لکه چې

د پښتوانی ګرمسیر مربوط ؤ او د نیمروز سره هم سرحده ؤ دشرق وخواته ئې د ښورا وک ریګونه ؤ اود غرب خوائې د برتاکی دښت د تا ګرشک او ترپه سیستان پورې رسېدیه دا پراخه منطقه دیوې ولسوالی او دوو علاقه داریو له خوا چې د دغه ولسوالی تر اثر لاندی دی اداره کېده د ګرمسیر ولسوالی د دېشو علاقه داری او دوهمه د ریګستان علاقه داری ده.

د پښتوانی ګرمسیر په سیمه کې هغه عصری تعمیرات، سړکونه پلونه، کانال، سربند، فرعی لښتیان، زابرونه او ویالی چې په دمخه فصل کې ذکر سوه نه لیدل کېده. ددوی ژوند د مادی او معنوی نقطه نظره ډېرساده او ابتدائی ؤ، فرعی لاری ئې خرابی وې دیوه

ځایه څخه بل ځای ته تنګ او رانګ مشکل ؤ، عراده جات هلته نه تله او نه د عراده جاتو سمې لاری وې، خلګ که به د ولایت مرکز ته د رسمی کارو او یانورو لیرو ځایو څخه د شخصی کارو دپاره تله ددوی دحمل ؤ نقل وسایل آس او اوښ وه چې د ولایت مرکز او د کندهار

ښار ته رسېده، شپې به ئې پرلاری په برکی تېرولی. د هلمند دسیند د یوې غاړې څخه وبلې غاړې ته اوښتل ډېرمشکل ؤ او یوه کمه اندازه مصرف ئې هم غوښتی. د استوګی د کورو، خونو اودښځو د

کالو جوړښت ئې تقریباً د اوس او پښتوانی وختو ترمنځ کم فرق نه لری مګر د ناړینه کالی ئې اصلاح شویدی. د

ناجوړه علاج او تداوی په پښتوانی وخت کې نه کېده د دوی علاج ډېرساده ؤ چې په آینده کې به د عرف او

عادات په فصل کې تفصیل درکړه سی، مګر نن ورځ هلته د هلمند د زراعتی انکشاف لوی ریاست له خوا

د عمومی صحت د مؤسسی له خوا یوه شفاخانه جوړه سوېده چې عصری تعمیر لری او موظف ډاکتر اودوه

نفره کمپوډران هم هلته وظیفه لری چې د خلګو د مریضی علاج کوی او دا

ویلای سم چې د ګرمسیر د خلګو صحت نسبت و پښتوا ته اوس ډېر وقایه شویدی.

دزراعت د نقطه نظره په خلګو کې تر تېرو څلورو کلونو دمخه و پښتوانی ګرمسیر او اوسنی ګرمسیر

ترمنځ کم فرق نه ؤ اما د څلورو کلونو را پدېخوا هلته د پنبې زراعت چې په پښتوا کې نه ؤ اوس د هلمند

د لوی ریاست د زراعتی پروژې د ریاست له خوا

په خلکو په فنی ډول کیږی . دغه رنگه د زراعتی پروژې له خوا نهالخانی هم جوړی سویدی ، خو باید وویل سی چې د پخوانی گرمسېر د زراعت او به ډېر لږ، مگر د ۱۳ کالو راپدېخوا د کانال په کیندلو سره هلته زراعتی او به ډېر پر پیمانه او ډېر لا مزروع ځمکی

تراوبو لاندی سویدی. د اجتماعی ژوند د نظره په پخوانی گرمسېر کی د ملوك الطوایفی آثار موجود ؤ او خلکو قبیلوی ژوند درلودی چې عموماً به یو ډله خلکك د ملاکانو او خانانو تراثر لاندی ؤ دا د خان او ملاك نفوذ او قدرت پر بزگر او مزدور کارو باندی ډېر ؤ

دائماً به دوی د ملاك تراثر لاندی ژوند کاوه او د خپل ژوندانه په شخصی کارونکی به ئې د ملاکانو او خانانو څخه مشوره او اجازه دهغوی د نفوذ اژ قدرت له رویه اخیستل. خانانو او ملاکانو به د دوی د سر، مال او اولادو اختیار درلودی . مزدورانو ته به د ډېر

کار په مقابل کی لږ اجوره ور کول کېده. د عدالت او انصاف پرنسیپ لږ عملی کېدی . بزگر خپل حق د ملاك څخه اسوای غوښتلای، د مزدورانو د کار ارزښ لږ ؤ، هر کار چې به په گرمسېر کی پیدا- کېدلی په خان او ملاك به مربوط ؤ، د کار د لږوالی له کبله بزگرانو

او مزدورانو بېله د ملاکانو د کار و څخه بل ځای کار نه سوای پیدا- کولای نو مستقیماً به د دوی تراثر لاندی وه. نور کارونه لکه صنعت او تجارت ډېر کم ؤ. مگر ننورغ هغه کارونه چې د هلمند د زراعتی انکشاف د لوی ریاست له خوا د گرمسېر په سیمه کی لکه د سړ کو ترمیم

د زابرو کیندل، د زراعتی ځمکو جوړول او نور کارونه د هغه محیط د خلکو له خوا کیږی، طبعاً د کار تقاضا زیاته سوه، د ملاك باداری پر مزدور او بزگر په نسبی توگه لږ سوه . هغه وخت چې کانال سړ کونه، پلان او نوری انکشافی پروژې په گرمسېر کی تکمیل کېدی

د ۳ کالو په موده کی خارجی او داخلی متخصصینو او کارگرو چې شمېر ئې تقریباً ۳۰۰۰ تنه ؤ کارونه وکړه. طبعاً هلته ماشینان او عراده جات هم ډېر وه، د گرمسېر ځینی خلکك هم د کار او کسب خاوندان اود هغې سیمې د خلکو ذهنیت د خارجی سهم او د داخلی

کارگرانو د تماس په واسطه فرق وکړ. د خانانو او ملاکانو قدرت او نفوذ نسبت و پخواته لږ سو ، که څه هم اوس د گرمسېر خلکك

لکه پخوا نه تر ا د ملاکانو تر اثر لاندی نه راځی، خو ملاك بیا هم زیات قدرت لری .

د امنیت او آرامی د نظره پخوانی گرمسېر نسبت وا وسنی گرمسېر ته ناآرامه ؤ، دائماً به د ملاکانو ترمنځ شخړی او مناقشی وی

او د دوو ملاکانو د برخلافی په نسبت به خلکك زخمیان اویا به ئې یو د بل په سره وژل د قدرت سره برابر به هر چا

وسلی په کور کی ساتلی، د منطقی د پراخوالی په نسبت د ولسوالی انضباط هم قوی نه ؤ، مگر ننورغ د حکومت

انضباط او د فکر د تحول په نسبت پخوانی ناآرامی او بېځایه تعصبات ، جنگړنه وژل او وهل ټکول په نسبی توگه لږ سویدی.

ننورغ د گرمسېر اوسنی محیط د اجتماعی وضعی او ثقافت د نظره نسبت و پخوا ته ډېر فرق لری وسعت

ئې کم دی . و جنوب طرف ته ئې د پخوانی گرمسېر څخه یوه ولسوالی د خانشین د ولسوالی په نامه د څو کلو نو

راپدېخوا د داخله وزارت له خوا جلا سوېده چې د ریگستان علاقه داری هم د هغه ولسوالی مربوط ده .

د اجتماعی ژوند د

نور به ۱۳ مخ کی

# یو ړوند نقاش او مجسمه جوړونکی

د فرانسې نامتو او معاصر لیکوال [موروا] وایي چې: په دا خپل ژوندکې مې ډېر سفرونه کړي او ډېر څه مې لیدلي دي خو پدې لیدلو کې مې دوه عجیب انسانان ولیدل چې خلک حیران ورته تللي دي، دا دوه انسانان چې ما لیدلي دي یو «هلن کلر» امریکائي لیکواله ده چې ړنده، کڼه او ګونګې ده. بل د فرانسې هنرمند نقاش او مجسمه جوړونکی «رنه تورنو» دی.

څوک چې وغواړي د ارادې او عزم په قدرت ځان وپوهوي ددوی د ژوند کامیابی، پوهې او هنر ته دې وګوري.

امریکائي لیکواله چې ټولې دنیا پېژندلې ده یوه پوهه لیکواله ده. خو زه دې چې یو څه لا د تعجب وړ ګرزېدلی دی هغه فرانسوی نقاش او مجسمه جوړونکی دی.

دا نقاش «رنه تورنو» مې په پاریس کې لیدلی ؤ چې پخپل کورکې په نقاشۍ او مجسمه جوړولو لګیا ؤ.

دې سړي دخپلې تواضع په وجه او د تظاهر سره د بې مېلۍ په سبب نه غوښتل چې خپل دهنرمندو لاسو محصولات په موزیم کې کېښېږدي یا ئې و لویو ننداریونو ته ولېږي، کله چې ئې دوستانو ولیدل چې دده د لاس کارونه ډېره فوق العادګي لري نو دا کار دوی وکړه چې د رنه تورنو آثار له هغه ورو وسته میدانې شوه او له ډېرو آثارو څخه ئې میدان هم یووړ.

دا نقاش په لومړي بین المللي جګړه کې یو شجاع عسکر او د یوه انفجار په اثر ئې دواړه سترګې ړندې سوې او یو لاس ئې هم والوت. نقاش چې دخپل بدن دا دوه نعمتونه دلاسه ورکړه بیا هم په ژوندکې مایوسه نه شو بلکې انساني اراده او عزم ئې په کار واچول تر پخوا لا موفق شو چې دا دده همت د نورې خلکو په سترګو ولیده.

«رنه تورنو» چې زخمي او ړوند شو یوه ځوانه او ښکلې کوزده ئې درلوده. دې همت ناکې ښځې چې خپل مېړه معیوب ولیده نه دا چې پرې ایښی دی بلکې پخپل ټوله قدرت او توان ئې دده و نېکمرغۍ ته توجه وکړه چې دا دوه همته سره متحد شوه او رنه تورنو څخه نابغه جوړ شو.

دا ښځه «ژاکلین» نومېده چې په ۱۹۴۴ کال کې دده سره ئې واده وکړه. نقاش دېوې داسې ښځې په درلو لو سره ځان ددنیا یو لوی نېکمرغه موجود بالهٔ ددې ښځې د محبت په سایه کې ئې په آسوده خاطر وخپل هنر ته ځان وقف کړ او هنري شاهکارونه ئې په وجود راوړه.

تورنه د مخه تردې چې معیوب شي یو ورزشکار او بوکس باز ځوان هم ؤ او پدغه وخت کې ئې د نقاشۍ سره څه علاقه درلوده چې ړوند شو نو ئې ټوله توجه دې خواته راوګرځېدل، سره د هغه چې د فرانسې دولت څخه مستمري معاش ورکاوه خپلې ځوانې ښځې به ئې کارونه کول او دده د ژوندانه اړتیاوې به ئې ورپوره کولې. دده د تمرین پروخت خپل ټول جوړ سوي شیان ضایع کول او د ځان سره ئې هیڅ اثر نه ؤ ساتلی له دې وروسته به ئې د مشهورو خلکو مجسمې او

د [تپاند] ژباړه

# د عشقونو فراق

ماته مکتوب مه لیکه ؛ نه پوهېږې چې څومره غمجن یم او څنګه د خپل ځان د نیستۍ آرزو کوم. ښکلې پسرلی بېرته ما ته لکه یو رڼا څراغ داسې وي .

ړول، ړول تابلوګانې تهیه کولې او پر بیایانو به ئې خرڅولې ځینې مجسمې او تصویرونه چې د فرانسې په خلګو به ئې اړه درلوده، دې خپلو خاوندانو به ځینې رانیول څه نور آثار به ئې د ځان سره ساتل .

په دوهم لوی جنګ کې چې فرانسه المانیانو ونیول نو المانیانو دده هنرمندی ته په حیرت کې شول .

د المان د اشغالګرو قوماندان د پاریس څخه په یوه لیک کې هټلر ته هم اطلاع ور کړې وه .

هټلر ویلي وه: چې دا هنرمند باید زه ووینم. خو «تورنو» حاضر نه شو چې هټلر ته ورسي او د ښځې په مرسته له پاریس څخه ووت او تر څو پاریس د المانیانو په لاس کې ؤ «تورنو» پټ ؤ .

د «تورنو» د نقاشۍ او مجسمه جوړولو کار چې طبعاً معطل سوی ؤ نو بیا هم دده لوړ همتې ښځې هنرمند «تورنو» درمانده پرې نښاوه او لکه پخوا غوندې همغسې ئې چلاوه.

پاریس چې آزاد شو «تورنو» او ښځه ئې بېرته راغله د انوالیډ په هوټل کې ئې واړول .

هنرمند نقاش او مجسمه جوړونکې خپل قیمتي اثرونه له دې وروسته جوړ کړه . هغه مشهور او ګران بیه نقاشۍ او مجسمې چې د پاریس د «رودن» په موزیم کې ایښول سویدي د دوهم جنګ وروسته ده جوړې کړیدي.

ړوند مجسمه ساز او نقاش چې څه مجسمې جوړې کړیدي ترتیب ئې داسې دی چې: په خپل سالم لاس به ئې «مدل» لمس کړ او بیا به ئې دهغه تېره میل په توسط چې په ځګر پورې به ئې تړلی ؤ مجسمه تراشل . په نقاشۍ ئې هم د ګوتو څخه د «مدل» د لمس کار اخیست او قلم به ئې په خوله کې نیولی نقش به ئې کاوه .

دا دده خبره ده چې وایي: هغه نور خلګ ئې په سترګو ویني ؛ زه ئې په ګوتو وینم.

د [عمرزی] ژباړه



او اوس مې خپل ځنګلې سره تړلي دي، ځکه نه مې سوای کولای چې تا پخپل بغل کې ټینګ ونیسم . نن

که مې په زړه لاس ووهې لکه په یوه خاموش او تاریک قبر چې دې لاس وهلی وي، ما ته مکتوب مه لیکه .

ماته مکتوب مه لیکه ! پر پرده چې زه او ته بېله د زړه له مرګه نور هیڅ سره ونه ګورو .

که غواړې چې و پوهېږې چې څومره مې دوسته درلودې خپل ځان څخه مې پوښتنه وکړه او که پخپل

زړه کې یوه خاموشانه بوغ واورې چې له عشق څخه فریاد وکړي داسې مثال لري لکه چې آسمان ته تللی يې، او د آسمان بوغ دې واوریدی.

ماته مکتوب مه لیکه ؟ زه ستا د لیک څخه وهمېږم او د خپل فکر څخه هم ډېر ډېر ؟ ځکه ستا د بوغ خاطره ماته

۱۳ مخ کی

# د ګرمسیر ...

د ۱۰ مخ باته

نقطې نظره په ګرمسېر کې د ووړو ژوند ورځ په‌ورځ مخ پر ښه کېدودی، د کار وسایل ډېر شویدی، اقتصادي بنیه د خلکو نسبت وړخواته ښه‌ده. هغه بېځایه عرفۍ‌عادات چې دغم او ښادیو په‌وخت کې به په ګرمسېر کې لیدل کېده نن‌ورځ بعضې کم او بعضې بلکل د منځه تللي. دعراده‌جاتو ټګشاوراټګ د مخابرې او تلفون‌وسایل یوځه منظم شویدی.

دمادی شرایطو له‌مخې دخلکو‌دژوند معنوی جنبه یعنی د فکر تحول هم‌نسبت وړخواته ښه شویدی.



# د ښکو ذوق او سلیقه

انسانان عموماً په‌هر ځای کې چې‌دی هریو ځان‌ته بېل ذوق‌او سلیقه لري. ذوق‌او‌سلیقه د هر‌محیط په پوه او دانش پورې اړه لري که‌محیط مترقي‌وي د خلکو ذوق ئې‌هم معقول‌او مترقي دي برعکس که محیط ابتدائي‌وي ذوقونه‌د هغه‌ځای د خلکو‌هم ابتدائي او بې‌معنا دي.

دګرمسېر د‌محیط خلک چنداني دښه ذوق او سلیقې خاوندان نه‌دي. هلته‌د انسانانو مختلفې طبقې ژوند کوي. بزګر او‌مزدور‌کاره‌طبقې عموماً د احتیاج د پوره‌کولو په‌فکر کې دي. مزدوران دکار د پیدا کولو کوښښ کوي‌چې حاصلات د‌مځکې زیاد او اقتصادي

وضع ئې ښه‌سي. د خانانو ذوق دادی چې املاك نقدي پیسې او حاصلات ئې ډېر وي او ډېر خلک ددوی دخانۍ او ملاکۍ تر نفوذ لاندې ژوند وکي او هر یو کوښښ لري چې په خپل محیط کې ئې ټوله کارونه دده په‌مشوره‌سرته‌ورسیږي.

سربېره پر پورتنیو طبقاتو یوه‌طبقه خلک سته چې ددې سره ذوق لري چې اولادونه‌ئې تعلیم وکړي او د‌آینده د پاره تربیه‌سي. دا خلک عموماً متوسطه طبقه ده؛ چې نه‌خانان او نه مزدوران دي بلکې کوچنۍ ملاکان، بزګران یادنورو پېشه‌ؤ خاوندان‌دي.

دګرمسېر ټوله‌خلک که‌غریب‌دی که بډای د ډمانو (۱) د سازا او غزل ډېلو او ډول او ډهلو سره ذوق لري او هرخان یو ډم سره د کوراني د ساز د پاره ساتي. «نوربیا»

(۱) ډم هغه خولک‌دي چې ساز کوي د خلکو سرو نه او ډېري اصلاح کوي

دعشقونو پاته برخه

دونه د زړه درد راپرې- اینې‌دی چې کله، کله دی غلبلی د خپله ځنګه سره اورم.

د خدای دپاره؛ پاکې او روڼې او به‌وهغه تږي ته چې د هغه د چینو حق نه‌لري مه‌ورښکاره کوه.

ماته لیك مه لیکه، ځکه د‌معشوق مکتوب د هغه یو ژوندې تصویر دی.

ماته مکتوب مه لیکه، او هغه دوې کرښې چې زه ئې دویلو قدرت‌نه‌لرم مه‌راته لیکه؛ ځکه ستا یغ هغه

زما وغوږو‌ته رسوي او ستا د خوشحالۍ ځېرې خندا وماته ستا د لیك پرمخ راښکاره کوي، نو ماته

مکتوب مه لیکه؛ ځکه داسې فکر کوم چې یوه سوځونکې مچه ستا له دوو شونډو دغه دوې خبرې مې د زړه

په لوحه نقش او لیکي، ماته مکتوب مه لیکه!




بناغلی عبدالکریم [محب]

## د مینی پیغام

بیا درته په کوکو په ژړا راغلی یم
ستر ګی دی راوړه په غلا راغلی یم
پوه نه شومه ستا په عفوه پوه نه شوم
وایه که څه وایې چې زه بیا راغلی یم
سرمې دی خیرات ستا د ښکلا په نوم
نن دی چې درشل ته بېنوا راغلی یم
مینه تخنوی راته اسری خوله کښې
داسې دی چې خوا ته بې حیا راغلی یم
ستا د نوی موږ لنهی ورېل نه جار
زه د نوی وخت په تقاضا راغلی یم
پر پرده حیا ، مخ ته سالو مه نیسه
زه دی ننداره ته د ښکلا راغلی یم
وکړه ناز ادا خو په غوسه نه شی
ستا د پیمانونو په سلا راغلی یم
خیر دی د جنون زولنی ښکل به کړم
ستا تر دې محله چې رسوا راغلی یم
وګوره «محب» ته په آشنا سترګو
ستا د خوږ نظر سره آشنا راغلی یم

بناغلی [هارونی]

## که هر څه ناوخته ولاړ سي

موږ دی وینو

ای چې پروت یی لکه ما پر سرو او سپینو
در په یاد ته بد احوال د مساکینو
ستا خورك کلچی ؤ کیك، وریجې ؤ غوښې
دوی ماړه نه دی تنها په او ربشینو
د هغو کره د خړ سان کالی نسته
ستا د کور بوخچې دی ډکی په زرینو
د دوی فرش څیری بوری ده یا بوریاده
ستا د کور خونې دی فرش په ښو قالینو
ستا په کور کی استعمال د ګردنر دی
د هغو وس قادر نه دی پر خاورینو
د سملونه چې ډك وړی د کور پرلوری
که هر څه ناوخته ولاړ سی موږ دی وینو
دا دی ټوله سه روزی څه بد کار نه دی
خو حال نیسه د بی وزلو مسلمینو
د ښه ژوند او نعمتو به شکرانه سی
هم دا ستا او هم دا ستا د ناز نینو

ښاغلی غلام دستګیر [لونګ]

# سپین مخ

یا ښکاره شو تــوره شپه کی د دلبر مخ
یا را وخوت په آسمان کی د سهر مخ
توره‌شپه چی شوه رڼا زه ورته‌ځیر شوم
ښه ښکـاره شو چـی هغه ؤ منور مخ
پلو شی د رڼا هر لوری خوری شوې
لکه خور شی په آسمان کی جوړ دلمر مخ

ستورو ورکړی خپلی غیږی په آسمان کی
هغه وخت چی را ښکاره شو د قمر مخ
ما «لونګ» لیدلی ډېر ښایسته مخونه
خو مـا نه ولید بـل داسی د بشر مخ



ښاغلی «الفت»

# خاوری او ګرزونه

له کوم لوری راروان یو جهان ګرد ؤ
مخ او ځټ باندی ئې پروت دلاری ګرد ؤ
ما وې څه دی ولیدل په‌دې جهان کی
ویلی دومره شومه‌پوه چی جهان ګرد ؤ



له دې خاوری سوه پیدا ډېر عالمونه
چی آباد ئې کړه لوی کلی لوی ښارونه
یو څو ورځی ئې د ژوند سندری ووې
بیرته خاوری سوه اوچت ئې سول ګردونه



لکه بوی چی له ګلشنه را جـدا سی
یـا بخار لـه دریـابونو په هـوا سی
یوه ورځ به هم زموږ له خاورو دوړو
یو ګرد پورته له صحرا نه د دنیا سی

ښاغلی [قتیل خوږیانی]

# امیدونه

ما سا تلی د عمرونو امیدونه
راولاړ می شوه په زړه باندی جوشونه
موده وشوه چی د هجر توره شپه ده
توره شپه کښی را پیښ سوی منزلونه
مستی ستا جمال به کله رابنکاره شی
چی می کم شی د مین زړګی دردونه
په امید ستا د دیدن عمرونه تېر شول
پورته نه شول د مین زړه ارمانونه
یوغم نه وی راځه تللی بل پیداشی
څو به ګالم تمامی عمر غمونه
د رقیب ناخوالو پریم ځورولی
ته لا هم محبوبی کاندی منتونه
هغه وخت را نژدې سوی امید شته دی
چی په مینه درته تاو کړمه لاسونه
د رقیب دغه ناخوالی به تل نه وی
ستا وربل کښی به کتار کړمه ګلونه

ښاغلی [اجمل خټک]

# د دیدن زیری

یا دا چی ستا د سترګو په سودا سومه
بس نه یم رسوا که اوس رسوا سومه
پټ پکښی دا ستا د دیدن زیری و
ځکه د یو ګل په تماشا سومه

بس هره ښادی په ما اوس غم لګی
ستا د دردو غم سره آشنا سومه
تېر وتم د ښکلو په خندا باندی
ښه سوه چی د خلکو د خندا سومه
بخت که می ویده وی تل نو ګرم نه دی
ښکار د خوبو لو د حیا سومه

---

توری شپو دی سهارونه زېږولی
د هجران شپی به آخر شی سهارونه
خو ته خپله مهربانه په «قتیل» شه
څو به ګالم ستا په عشق کی تکلیفونه

ښاغلی [لایق]

# ځوانته

په کوم ځای کی چی د علم ډېوه بل سی
یا د فکر لمبه وسوځی جل بل سی
د پتنګ په شانی ځان ترینه قربان کړه
چی سینه دی له ایرو ځنی خجل سی

---

ځوان هغه دی چی د ځوان فکر خاوند وی
نه هغی چی د اوهامو په دام بند وی
سل ځوانان دی تر هغه زاړه قربان سی
چی خاوند د نوی رنګ او نوی خوند وی

---

هغه ځوان چی د وطن په دردو سوځیږی
که سل ځله په مخ لوېږی پورته کیږی
ما تری سل ځله قربان او صدقه کړې
چی د مرګه په پوله ناست دی لا خوځیږی

ښاغلي [متين] خوږياڼی

## شاعره!

شاعره بس دی نور دعشق او دنگار خبری
په خوږه مينه راته وايکه د کار خبری
د عشق جذبی مه پاروه دا تمنا ومنه
په لټی مه اخته کوه څوك دا زما ومنه
چی پند آری وا خلم ردوه د ستمګار خبری

قومی دردونو څيری جوړ يو لونګين که راته
لږ څه خوشاله دازما زړګی غمګين که راته
مه يادوه د خدای د پاره د رويبار خبری

دا پښتونخوا زموږ نه غواړی اعتلا په دنيا
نام او نښان رانه روکيه سربالا په دنيا
ډیر يم تنګ شوی چی زه اورم د اغيار خبری

عشق انديښنه ده زندګی سره تاوان رسوی
دژوند سمون ته دجنون ډك ارمغان رسوی
له خپلو مټو چی کار واخلم کړه رويکار خبری

د وطن مينی ملی درد سره آشنا می که لږ
په اخوت کښی غمشريك نن د هر چا می که لږ
راته بيان کړه د خالق پروردګار خبری

دځانګړی ځنی په څنګ دا پښتونخوا کړه زما
دغه ژړا خو لږ بدله په خندا کړه زما
چی سعادت راولی کړه راته اظهار خبری

دا د «متين» د زړه آرزو له شاعرانو نه ده
په پښتونخوا کی بارکيدنو اديبانو نه ده
د رهنما په څير چی وکړی د ملیار خبری

ښاغلي شير محمد [ولس مل]

## وطنه!

تر نړ يدلو کنډوالو دی قربان
تر دغه جګو جګو غرو دی قربان
ستا په هر کوټ کی غير تمن لوئيږی
ستا تر زانګو ستا تر ټالو دی
قربان
د غرو لمنی شنه دښتو نه لاڅه
ستا تر لاښو او ګړنګو دی
قربان
په شنو کښتو او کروندو کی چی دی
د هر بزګر تر زحمتو دی
قربان
په کارخانو کی کارګر يادوم
د هر کارګر تر کوښښو دی
قربان
په مؤسسو کی دانو فکره ځوانان
د هر يو ځوان تر ښو فکرو دی
قربان
دانوی نسل چی دی اوس لوئيږی
د دغه نسل تر ځلمو دی
قربان
مور په شيدو کی مينه ستا ورکوی
د هسی ميندو تر شيدو دی
قربان
ولس مل ژوندی وقف کړی تا ته!
ستا تر ګوښو او کنارو دی
قربان

## علم او لوړ تيا

ښاغلي دين محمد [سامی]

هر څير لره په علم کښی لوړتيا شته — په وحدت خو پيژندل هم د الله شته
چی خپل ځان به نيکو ورو دی نيکبخت شی — آدمی ته ښه کارونه په دنيا شته
مرد ني بولم چی خادم دخپل وطن وی — د وطن د ننګ ساتلو کښی بقا شته
ډاډه به ور کړم ای سامی تمام جهان ته — ما سره توره، توپك ننګ دبابا شته

ښاغلی [باور]

# زما د فکر سر ئې په زنګون لیکلی دی

تقدیر چې مې ازل کښې نوم پښتون لیکلی دی
ذلیل زما په برخه ئې ژوندون لیکلی دی
دنیا د بیدارۍ کښې پر پوهنې ده مدهوش
راتلل زما دنیا ته ئې پرون لیکلی دی

نور خلک په روڼو سترګو جهان ته کړی نظر
جهان زما د پیاره ئې جنون لیکلی دی
دریاب د معرفت کښې خلکو بیا مینده ګوهر
د جهل د غرقاب سیند ئې جیحون لیکلی دی

انسان په کمالاتو په فضا کړی تجارت
زما سر ئې شکم ته سرنګون لیکلی دی
د خلکو کاروانونه شپه او ورځ کوی مزل
زما کاروان ئې خوب باندې مفتون لیکلی دی
آزاد فکر واصل کړله معراج ته نور عالم
زما د فکر سر ئې په زنګون لیکلی دی
خوشوقته بلبلان په آزادۍ کوی چغار
زما د زړه بلبل ئې جګر خون لیکلی دی

ښائست د سرو ګلانو تور زاغان کړه په نڅا
بورا د ژیړو ګلو ئې محزون لیکلی دی
د علم برکت تورتم کورونه کړه رڼا
زما منور کور جهل واژګون لیکلی دی

نور خلک دې جهان کې خوشحالی خنداهوس کړی
پښتون ئې دې جهان کښې لړمون خوږین لیکلی دی
د یو معدن جوهر یو په دفتر کښې د خلقت
هغه ئې جلوه‌دار دا ئې خړګون لیکلی دی

معلم که متعلم ئې په مکتب کښې د ادب
ژوندون زما په برخه چا زبون لیکلی دی
په پټه خوله مې بوی کړه چې بل کس نشي خبر
د خلاصې خولې بیان «باور» مظنون لیکلی دی

ښاغلی [متین] خوږیانی

## شاعره!

شاعره بس دی نور دعشق او د ننګار خبری
په خوږه مینه راته ولیکه د کار خبری
د عشق جذبې مه پاروه دا تمنا ومنه
په لټې مه اخته کوه څوك دا زما ومنه
چې پښد آری واخلم ردوه د ستمګار خبری

قومی دردونو ځینې جوړې لو لنګین که راته
لږ څه خوشاله دا زما زړګی غمګین که راته
مه یادوه د خدای دپاره د رویبار خبری

دا پښتونخوا زموږ ته غواړی اعتلا په دنیا
نام او نښان رانه روکیه سربالا په دنیا
وېریم تنګ شوی چې زه اورم د اغیار خبری

عشق اندېښنه ده زندګی سره تاوان رسوی
دژوند سمون ته د جنون یوك ارمغان رسوی
له خپلو مټو چې کار واخلم کړه رویکار خبری

د وطن مینې ملی درد سره آشنا می که لږ
په اخوت کښې غمشریك نن د هرچا می که لږ
راته بیان کړه د خالق پروردګار خبری

دځا نځانی ځنی په څنګ دا پښتونخوا کړه زما
دغه ژړا خو لږ بدله په خندا کړه زما
چې سعادت راولی کړه راته اظهار خبری

دا د «متین» د زړه آرزو له شاعرانو نه ده
په پښتونخوا کې بارکېدنو ادیبانو نه ده
د رهنما په څېر چې وکړی د ملیار خبری

ښاغلی شیر محمد [ ولس مل]

## وطنه!

تر نړېدلو کنډوالو دی قربان
تر دغه جنګو جنګو غرو دی قربان
ستا په مرکوټ کی غیر تمن لو ئیږی
ستا تر زانګو ستا تر ټالو دی
قربان
د غرو لمنی شنه دښتو نه لاځه
ستا تر لاښو او ګړنګو دی
قربان
په شنو کښتو او کروندو کی چی دی
د هر بزګر تر زحمتو دی
قربان
په کارخانو کی کارګر یادوم
د هر کارګر تر کوښښو دی
قربان
په مؤسسو کی دانو فکره ځوانان
د هر یو ځوان تر ښو فکرو دی
قربان
دا نوی نسل چی دی اوس لوئیږی
د دغه نسل تر ځلمو دی
قربان
مور په شیدو کی مینه ستا ورکوی
د هسی مینو تر شیدو دی
قربان
ولس مل ژوندی وقف کړی تا ته!
ستا تر ګوښو او کنارو دی
قربان

## علم او لوړتیا

ښاغلی دین محمد [سامی]

هر څېر لره په علم کښې لوړتیا شته
په وحدت خو پېژندل هم د الله شته
چې خپل ځان په نیکو روزی نیکبخت شی
آدمی ته ښه کارونه په دنیا شته
مرد ئې بولم چې خادم دخپل وطن وی
د وطن د ننګ ساتلو کښې بقا شته
داړه په ور کړم ای سامی تمام جهان ته
ماسره آوره، تو یك ننګ د بابا شته

ښاغلی [باور]

# زما د فکر سر ئې په ځنګون ليکلی دی

تقدير چې مې ازل کښې تول پښتون ليکلی دی
ذليل زما په برخه ئې ژوندون ليکلی دی
دنيا د بيدارۍ کښې پر پوتلی يم مدهوش
راتګ زما دنيا ته ئې پرون ليکلی دی

نور خلک په روڼو سترګو جهان ته کړی نظر
جهان زما دپاره ئې جنون ليکلی دی
درياب د معرفت کښې خلکو بيا ميندل ګوهر
د جهل دغرقاب سيند ئې جيحون ليکلی دی

انسان په کمالاتو په فضا کړی تجارت
زما سر ئې شکم ته سرنګون ليکلی دی
د خلکو کاروانونه شپه او ورځ کوی مزل
زما کاروان ئې خوب باندی مفتون ليکلی دی
آزاد فکر واصل کړله معراج ته نور عالم
زما د فکر سر ئې په ځنګون ليکلی دی
خوشوقته بلبلان په آزادۍ کوی چغار
زما د زړه بلبل ئې جګر خون ليکلی دی

ښائست د سروګلانو تور زاغان کړه په نخا
بورا د ژيړو ګلو ئې محزون ليکلی دی
د علم برکت تور تم کوروڼه کړه رڼا
زما منور کور جهل واژګون ليکلی دی

نور خلک دې جهان کې خوشحالی خنداهوس کړی
پښتون ئې دې جهان کښې ژړمون خوږين ليکلی دی
د يو معدن جوهر يو په دفتر کښې د خلقت
هغه ئې جلوه‌دار دا ئې خړګون ليکلی دی

معلم که متعلم ئې په مکتب کښې د ادب
ژوندون زما په برخه چا زبون ليکلی دی
په پټه خوله مې بوی کړه چې بل کس نشی خبر
د خلاصی خولی بيان «باور» مظنون ليکلی دی

ښاغلی عبدالهادی
[خوږمن]

# هغه شپه

چوغکی او نور پرندګان؛ هغه شپه وختی په ځالیو ننوتی او چپه چپائی وه.

ورم او باد نه لګېدیه آسمان تاول ښه ډېر دخپله ځایه راکښته شویدی؛ هوا خپه او فضا دسهلو نه‌وه په باغچه کی یو پاڼی هم نه ښورېدیه؛ ټوله نړیه په یوه سره سنا زنګېده.



دې چپی چپائی ډېر پاینښت ونه کړه، یو څه وروسته ځاځکی، ځاځکی باران په‌اورېدو پیل وکیه ټک ټک د ونو پر پاڼو دانه، دانه باران اورېدیه لږ، لږ باد هم وخوځول. هوا سړه‌سوه؛ توری تیارې او دربی پر ټولو ګوټو برستن وغوړول. تیاره‌هم دغسی‌وه، د لاس ګوتی نه معلومېدیه.

هیڅ نه سوای ویلای چی داسی یوه شپه به څنګه پای ته ورسیږی؛ ته‌وا سهار به‌سی، بیا به لمر راوخیژی او دا تیاره نړیه به په خپل ښکلی مخ سره روښانه کی؟

ترڅو به بړغ او بړوغ نه‌وی تاچیول پردې درستی نړیه باندې دګونګ ناره سوېده.



د خونی وره پوری سوه پردې کښته‌سوې؛ په باغچه کی د ونو ځانګی کښته او پورته کېږی، ته‌وا غواړی چی مېنداری ماتی کی او په خونه راننوزی د باران لوی، لوی ځاځکی چی هر پلا د کړکیو څخه وښلی ته‌چی‌وا چا په لاس کړکیه راپوری وهل.

بېره او تیاره! دبا مدی راووتم؛ اوه: لامی یوه ښه په‌خونی کی‌وه چی باد راپوری وهلم او دخونی په منځ کی ئې لکه چاچی په ځا پېره وهلی یم وغورځولم او خونی‌ور ئې په تاخت راپسی پوری کړ.

پرټوله کور تاچیول د..... ساه ختلی‌ده؛ دباندی باران باد اوطوفان‌دی. دونه ښاخلی کړپ، کړپ متیږی یووار خړاپ سی‌بیا درز؛ څه‌حال ؤ دکړکیو یوه پله می پورته کړه چی وګورم دباندی باغچه پر څه حال ده؛ مالا کړکیه ښه‌وه پورته کړی چی‌د باد طوفان راغیه او کړکیه ئې په زور سره ووهله هنداره‌ئې ولوېده اوزما دمخه سره رېچی، ریچی‌سوه.

دباندی ونی او د سرو ګلانو بوټی ددې سېلیه د صدمی څخه پر مځکه لوېدل مځکی تاچیول په وینو سره کالی اغوستی دی.



په پورته خونه کی یو زوړ سړی پروت ؤ، دی بخپله بخوله اخته او په خولو کی ډوب دی، کله سترګی روڼی کی او د کټه څخه پورته وغورځی او کله سترګی پټی کی یو څه ووایی او پرېوزی، په ځان کی ئې اور دی، یا ئې د اور کمیس اغوستی دی. ددې زاړه د کټ دا‌ړخه سره یو دېنګه‌ویشتو کالو ځوان ناست، سترګی ئې سرې دی او یو څه وایی زاړه سترګی روڼی کړې خوله ئې سره ټوله کړه او په ډېر زحمت ئې وویل:

څه مهال دی؟.

ځوان په سرو سترګو ورته وویل: څلور بجی دی اوس به‌دستی سهار سی.

معلومه ده چی زاړه یوازی څلور واورېده نو دتل دپاره بیده سو.

سپېدې وچاودیه سهار سو او یو ژړ، پیکه او بې سیکه لمر راوخوت؛ طوفان

نور به ۲۱ مخ کی

# د خندا !!! پلوشې

دمحمد ناصر [نصرت]
ژباړه او ټولونه

## بې پیسو وږی

یوسړی چې ډېر وږی او په جېب کې ئې یوه پیسه هم نه درلوده هوټل ته ورغلی، څو ډوله خواړه ئې راوغوښتل او چې گرده ئې نوش جان کړه، هوټلي ئې راغوښتی ورته وئې ویل :

آیا یو وخت به داسې نه وی پېښه شوې چې یو څوک دی دلته ځان تر پزې موړ، او یوه پیسه دی ونه لری چې تاسی ته دی ورکړی؟

هوټلی. یه .

بې پیسو سړی. که چیری یو وخت داسی پېښه شی څه به ورسره وکې ؟.

هوټلی. ما وویل چې داسې نه ده پېښه شوې !.

بې پیسو سړی. درست، لېکن ته ئې فرض کړه چې داسې پېښه شوه نو څه کوې ؟.

هوټلی. بې له دې چې یو څو لغتې ئې ووهم او وئې باسم نور څه نه شم کولای.

بې پیسو سړی. دستی له ځایه ولاړ، او وئې ویل راسه، ما ووهه غواړم چې ولاړ سم.

## د ملا نصرالدین ناروغی

یوه ورځ ملا ناروغه شوی، او چې یوه ډله دوستان او آشنایان ئې د پوښتنې د پاره ور تلل نو هلته به ورته ناست او نه ولاړېدل، آخر ملا ډېر په تنگ شوی د ناروغی پر بستر تیک ودرېد او وئې ویل :

ملگرو ! ډېر، ډېر شکر وکاږئ، دا دی خدای تعالی [ج] ستاسو ناروغ ته صحت ورکړ لطفا خپلو کورونه ولاړ سئ.

❁❁❁

## رشتیا ویونکی فقیر

یو سړی په کوڅه کې تېرېده چې یو فقیر ورناری کړه : یوه پیسه راکړه .

سړی جیب ته لاس کړی چې یو څه ئې ور کړه ځنې رهی شو .

فقیر چې وکتل د یوې پیسې پر ځای یو غران دی گمان ئې شو چې سړی سهوه شوی، ډېری پیسې ئې راکړېدی، په ځغاسته پسې ورغلی ورته وئې ویل:

ښاغلی ...! د یوې پیسې پر ځای دی یو غران راکړېدی.

سړی غران ځنی اخیستی او ور ته وئې ویل:
ځرنګه چې ستا د راستی، او معقولیت حق تردې زیات دی، نو یوه اشرفی ئې لـه جیبه راایستلی ورئې کړه.



### خجالت

یو هلك د پلار په پټه شراب خوړل، خو پلار ئې پدې تلاش کی‌ؤ چې زوی یو داسی ځای پرو وینی چې دهغه دملامتیا دپاره بیاد بهانې ځای پاته نه وی.

یوه ورځ زوی او پلار داسی ځای سره مخامخ شول چې د زوی ئې د شرآبو بوتل په لاس کی‌ؤ پوښتنه ئې وکړه.

پلار. دا څه شی دی؟

زوی. شیدې دی.

پلار. شیدې خو سپینی وی او دا سره دی؟

زوی. دا شیدې سپینی وې خو ځرنګه چې تاسی ئې ولیدلاست له خجالته ئې رنګ سور شو.

پلار. له خجالته باید ته سور شوی وای نه شیدې.



### پوه طبیب

یو سړی خپله مور چې د ډېری کمزوری له امله پر لاری نه شوای تلای په زنبېل کی کښېنولې تر ډاکتر پوری ورسول چې د قوت دواء ورکړی.

ډاکتر ورته وویل چې دا باید ډېر ځله تازه کوچې وخوری، یادی مېړه وکړی.

زوی ئې دغه خبره مورته کړې، او هغې ور ته وویل:

زوی جانه! ته په خپله فکر وکړه آیا زه غاښونه لرم چې تازه کوچې په وخورم؟ وروسته ئې فیصله وکړه چې هغه مېړه ته ورکړی، کله چې د ډاکتر له ځایه راووتل مور یې و زوی ته مخ ورګرزولی پوښتنه ئې وکړه:

آیا دا پوه طبیب «لقمان حکیم» ؤ چې داسی ښه، ښه علاجونه کوی؟.



### د آشپز ځواب

یو سړی وغوښتل چې خپل آشپز ځواب کړی، آشپز ورته وویل چې:
زما ایستل ستا پرمادی او جسمی تاوان تمامیږی. ځکه کلمونه، کلمونه کیږی چې زما له نا کاره خوړو سره دی عادت نیولی لږ، لږ خورې او که چیری بل آشپز راولی چې تاسی ته خوندور خواړه دربرابر کړی نو طبعاً ډېر، ډېر خورې او حتماً ناروغه کیږی.

## هغه شپه

د ۱۹ مخ باته

او باران خپله قوه وپای ته رسولی او ګراره ګراری سوی وه.

یوار ددې ګراری، ګراری او چپی چپائی ځخه د نارو، چغارو او کروڼو بږغ پورته سو تاچی ویل تراوسه دې تیارې، شپې دوی نه پرېښوول چې بږغ پورته کی.



ښه سو چې هغه ویرجنه او سهمناکه شپه تېره سوه که ځه هم د کور سرغنه او مشر ئې وخوړ او تورو خاورو ته ئې وسپاری.

د نفوسو ډېروالی او نوی هیلی — د ښاغلی عبدالصمد [فدا] ژباړه

# د نفوسو د زیاتوالی په برخه کی بحث سمدستی په متباین ډول سره مطرح شو

په لومړی ګام کی کېدای شی چی د یوه بېساری خطر په حیث، او بل د نوی امیدونو په رڼاکی ددغه پرابلم حل په نورو پاتی کلونو کی یعنی په اوسنی پېړه کی وشی، او البته دغه هم سختهده چی لهدغودوو موضوع-ګانو دی یوه مهمه او بـرجسته ښکاره شی.

ذکر شوی خطرونو په ټولو صنعتی دوروکی دوه پر درېد نړی خلک پهوروسته پاتی هیوا-دونو کی تخنیك تر تهدیدلاندی نیولی دی، اودغه تهدید دسیاسی موقعیت دتثبیت سره، سره بیاهم دغوهیوادونو پراختیا اوتوسعه کړېده.

حاصل شوی امیدونه دهمدغه حقیقت پرمخ ولاړدی چی اوس ئې نوی لاری چاری پیدا کړېدی.

نوکهچیری نړیه ددغی معضلې غوښتونکی وی او خپل ټـول طاقتونهدهغه په برابر کی متمرکز کړی، نو یقین دی چی ستاپل شوی پـرابلم د شلمی پېړیه په دریمه برخه کی دحل صورت خپل ځان ته غوره کړی. داځکه چی اوس هغه عصر تللی دی چی پرابلمونه بهنه مغلوب کېدونکی بلل کېدل ددغه امر تطبیقول زه لهټولونه اول پهوروسته پاتی هیوا-دونو کی تخنیك لازم بولم پـدغه هیوادونو کی دغه سوال مهم نهدی چی هغوی پدې صورت کی د ترقی او انکشافات مدارج طی کړی او څونه شمېر خلك ددغه امر د ملاتـړ دپاره ښایی چی پیدا کړی.

په اوسنی حال کی دغه هیوادونه په زیـاته درجه سره فقیر او پـه اخیرنی درجهسره دتعلیم اوتربیی څخه فـاقد اود اجتماعی منظمو تشکیلاتـو څخه بی برخی دی، ځکه دغهعوامل موجب شول چی هغو دعلم او د خپلو نویو معلوماتو څخه استفـاده نشی کولای او هغوی مجبـور دی لـه هغهځای څخهاوس په کار پیل وکړی اونه لههغهځای څخه چی د هغه آرزو لری. د نړیه واقعی پرابلم دغهدی چی دنفوسو ورځ په ورځ زیاتېدل د هغوی د اقتصادیـاتو د پرمختګ او پېشرفت مـانع دی او دغه یو دایمی خطر دی چی بشر دعالی هدفـونو له منظور څخه لیری لری لهدې جهته نواساسی سوال دادی چی څنګهبه دنیا وکولای شی چی ددغه ورځ پهورځ زیاتېدو مخنیوی دی وکړی او خپل ځان تهدی د معنوی اومادی پرمختګ لاره هـواره کړی اوس دغه حقیقت څرګـند شویدی چی د نفوسو د زیـاتـوالی مخنیوی زیـات مدرکونه او نیازمندی غواړی.

ډېر له پرمخ تللو هیوادونو څخهدنفوسو خاوندان دی چی په کال کی لږ تر لږه ۵یا۴ فیصدي زیاتوالی په هغو کی صورت نیـسی ددغـو هیوادونو د نفوسو د لږ زیاتوالی موجب نهوارسی کېدل دصحی چارو او دصحی شبکونه تنظیم کېدل دی، البته دصحی سرویسونو زیاتـول د نفوسو

زیاتوالی چې بېساری چټکتیا سره
صورت نیسي چې و نیسي .

پدغه صورت کې د نفوذ زیا-
تېدل په پنځوا ودرو او حتی زیات
نه نیسي چې ترقي دی وکړی او د
نفوسو د زیاتېدو ادامه په اندازه

د ۵ او ۴ فیصدی د نفوسو ټوله
شمېر ئې د ۴۸ کالو په موده دوه
چنده شویدی او د هغه د زیاتوالی
اندازه به د موجوده شمېر په سلو
کې ۵ یا ۴ د سلو کلونو په ظرف
دوه برابره نیسي چې و دې شي .

ترهغه وخته چې د نفوسو د
چټک زیاتوالی مخه نیول کیږي
وروسته پاتې هیوادونه او تخنیک
د نفوسو د لوی مشکل په مقابل کې

دوه چنده بلاس په ګرېوان وي
او په کار ده چې د اوسنی پېړی
ترختم پوری د دغه پرابلم د حل
په فکر کې ولوېږی، پدې معنا

چې ذکر شوی هیوادونه د هغو
ماشومانو د پاره چې په راتلونکی
کال کې زیږی درست پروګرا-
مونه تهیه کړی او د مخ نیولو
لاری نه د پرورښت په وخت کې
هغوی ته ورزده کړی .

۞۞۞

# د زیږیدلو او مړو

ترمنځ عدم تناسب

په یوه ژور نظر سره کولای
شي چې د نفوسو د چټک زیاتوالی
منشأ پیدا کړه شي په اوسنی

نړیه کې د تولیداتو موضوع
په زیاته پیمانه سره لوړه
تللې ده او له بل پلوه د مړه
کېدولو موضوع ورځ په

ورځ مخ په لږ پدوده د مثال
په ډول باید وویل شي چې
اروپا په ۱۹ قرن کې د دغو
هیوادونو نفوس په ډېر

مشکل په کال کې په سلو کې
له یوه څخه تجاوز کاوه او
وروسته له دې دغه اندازه
و ۳۵ تنو ته په مقابل کې د

یوزرو تنو تجاوز وکړی او
دانن ورځی په مخ پر انکشافه
هیوادونو کې د تولداتو
اندازه په عمومي ډول ۴۰
تنه د ۵۵ کسو په مقابل کې
ده .

د دغه اختلاف علت د مړینې
پیدا کړی او د ازدواج مسئله
د دغو هیوادونو د خلکو په
منځ کې ده چې اکثره د

هغوی د نوی بلوغ په سنینو کې
و دغه کار ته اقدام کوی او
د دغه هیوادو ځوانان
کله چې و ۴۰ کلو ته ورسېدل
د ۸ یا زیات ترهغه د ماشو
مانو څښتن وی .

۞۞۞

# د زیږیدو او

مړو ترمنځ نسبت د دقت
قابل دی

په ۱۹ پېړی کې د اروپا مړی
۲۵ تنو په مقابل کې د هر لسو زرو
یو عادی امر ؤ او که چېری دغه

شمېر بیا ۳۰ ته رسېدلی وای نو
غیر عادی تلقی کېدی او د نن
ورځی پر مخ تللو هیوادونو کې

۲۵ تنه ډېر لوړ دی او ۲۰ نفره یو
عادی شی ګڼل کیږی او دغه شمېر
په همهغه ډول کښته راغلی دی
او ۲ تنه په مقابل کې د یو زر تنو

کښته دی، د دغه تنزیل لوی علت
د ارقام د امکاناتو مساعدول دی
چې و منځ ته راغلی دی . د سلفاد
انتی ، بیوتیک دواوی او د حشراتو

ضد دوا ډېر له دغو ناروغیو څخه
تر کنټرول لاندی رواستی دی د ډېر
ژوند یا د اوږده عمر آرزو د
د قابل توجه په ډول په ډېر و هغو

هیوادونو کې چې مخته تللی
دی تحقق ئې پیدا کړیدی او نن
ورځ په ځینو سیمو کې عمر تر
۶۰ کالو څخه زیات تېری کوی

او دغه ارقام نسبتاً د امریکا و
متحده ایالاتو ته چې په هغه
ځای کې د ژوند اوږدوالی له
۷۰ کالو څخه زیات دی په هغه

اندازه فاحش فرق نلری یو له
مهمو دلایلو څخه د مړینې لږوالی
په یو شمېر مخ پر انکشاف هیوا-
دونو کې زېږیدو میزان د هغوی
د ځوانانو د تمایل په اثر د واده
مصرف ډېر لوړ تللی دی چې

البته دصحي سرو پسو نو فعالیت په امرکی بی تأثیره نه دی .

دمثال په ډول په جاپان کی د مړینی شمېر نسبتاً و امریکا ته لږ دی او همدغه راز دسیلون د هیواد د مړینی شمېر نسبتاً

فرانسی او انګلستان ته کم دی ګذشته له دې دمړینی دلږوالی علت یوه تاریخی جنبه لری چی په یوه سلسله او دامنه دار فعا-

لیتو نو په دغه کارکی د صحي شرایطو ښه کېدل اود نویو لارو څخه استفاده دناروغیو د کنترول سره یوځای دی .

او البته دغه به غیر عاقلانه وی چی د نفوسو چټك تقلیل د شلم‌قرن ترختم پوری په‌سلو کی د یوه آرزو وکړو اوس ددغه میعار اندازه طبیعی زیاتوالی په امریکا کی دی .

مخ پر انکشاف هیوادونه دغیر مترقبه واقعاتو ماسیوا اودصحي شرایطو د ښه کېدو په‌صورت کی کولای شی چی د خپلو نفوسو

زیاتوب چی اوس په ۱۰۰ کی ۵ یا ۳ دی په راتلونکی وخت کی په ۱۰۰ کی ۵ یا ۳ لوړ بوزی په یو فیصد یا ۵-۱ فیصدی د اوسنی

بېرې ترختم پوری تقلیل کړی ددغه تصمیم ارزښت پخوا تر هغه چی د تعلیم او تربیی او تولیداتو زمینه مساعده کړی په‌هغه‌وخت

کی به نو څرګنده شی چی دغه قضیه په دوو پهلو، پهلو لاروسره حل شی .

نو هر کله که یو هیواد خپل تولیدات په کال کی په ۱۰۰ کی ۵ زیات کړی (هغه معیار چی بی طاقته هیواد

دهغه قدرت لری) اود نفوسو زیاتوالی به په ۱۰۰ کی ۳۰ په کال کی بالغ شی . او عایدات ددارنګه هیوادونو

پر یو نفر په ۱۰۰ کی ۲ ښایی چی لوړ دی اودغه دامفهوم ورکوی چی عمومی عایدات د اوسنی بېرې تراخیره تر

دوه چنده ښایی چی زیات دی‌نشی او د ۳۵ راتلونکو کلو په ظرف کی دیوه نفر عاید په کال کی له یوسل

ډالروڅخه و ۲۰۰ ډالروته ښایی چی زیادت پیدا کړی مګر په‌عین‌وخت کی به نفوس ۷-۳ فیصدی ښایی لوړ ولاړ

شی او پدغه حساب موفقیتونه به ۷-۳ فیصدی ارتقا وکړی پداسی حال کی چی یو زیات شمېر خلك به‌ددې باوجوده

چی سرشار منابع او تولیدی وسایل به هم ولری بیا به هم دلوږی او فلاکت په‌حال کی ژوند سرته رسوی . د نړیه په نفوسو ډ کو سیمو کی

پرابلم له‌دې څخه هم تکلیف ورکونکی دی .

دمثال په‌ډول دهند جمهوریت ذکر کوم: ددغه هیواد دنفوسو زیاتوب چی عبارت د۴-۳ فیصدی څخه دی، چی د شلمی بېرې تر

پای پوری دهند نفوس چی اوس نیم بلیونه دی و یوه بلیون ته ښایی چی ورسیږی، اوهند پخوا د پخوا څخه د غلی کمبوت د

موضوع سره مخامخ دی د هند کرهڼی په ناامیده‌توګه بهبود کړیدی نو هروخت که د هند نفوس دغه اوسنی معیار وساتی

په هغه صورت کی نو د مځکنی تولیداتو د زیادت دپاره ډېر فعالیتونه په کاردی یو بېساری چټکتیا چی هغه‌هم د تیورکی،

تخنیك، کرهڼی د انکشاف په برخه کی لازم دی څو چی هند وکولای‌شی دخلکو دورځ په‌ورځ زیاتېدونکو نیازمندیو ته مثبت

ځواب ووایی . له‌دغو لاروڅخه په کاراچول دتولیداتو زیاتېدل لږ کړ او ایجابوی او له‌غنی لاری څه دتولید موازنه‌د تخم دتهیی

دلاری دترانسپورټ ښه کېدل او دپوره تسهیلات دنباتی ناروغیو کنترول اود رکورد عملی کېدل

کولای شی او البته دغه سیستم د ډېرو کسانو ایجاب کوی، نو هروخت که د هند نفوس خپل

زیاتوالی ته ادامه ورکړی په دغه صورت کی نو دهند هیواد بنا ئی چی مجبوره شی چی د نیم بیلون نورو خپلو خلکو دپاره په (۳۹) راتلونکو کلونو کی د هیواد په دباندی کی دخوراکی موادو په لټه کی شی .

او البته دغه موضوع د سیاسی نظره دغه راز یوه ماتی کښل کیږی له دی جهته هیواد چی د بیکاری په ناروغی باندی اخته دی .

د نیم بیلون نورو زیاتوالو په صورت کی نو د کار پیدا کیدل او دهغوی داعاشی او آباتی په برابرولو کی مشکلات مخکی راځی نو که چیری سیاسی موضوع حل نه سی په هغه صورت کی نو دغه خطر یوه بله بڼه ځان ته نیسی او د یوزیات شمیر خلکو سرانجام به دفلاکت او بربادی سره مخامخ شی او دغه نو خطر دی چی ډیر د نفوسو کو هیوادونه لکه هند، پاکستان، اندونزیا، د عربی متحد جمهوریت، او د ولسی چین جمهوریت له هغه سره مخامخ دی .



# راتلونکی خوش بینی

د تیر شوی اظهاراتو له نظره مشکله ده چی موضوع دخوش بینی تر مطالعی لاندی ونیول شی ولی په دغه ځای کی ځینی علامی او شواهد موجود دی چی کیدای شی چی په هغه سره مطمئین شو او دا په هغه صورت کی امکان لری چی دنړی خلك تو له اصلی خطرونه احساس کړی او د هغه دمنځه وړلو دپاره خپلی منابع او انرژی په کار واچوی .

مونږ اوس داسی اساسات په لاس کی لرو چی وکولای شو د تولیداتو په تقلیل کی په یوه بله دهه کی مطمئین شو دد . ته جمعی فعالیتونه باید په دواړو ساحو کی یعنی اقتصادی انکشاف او د تولیداتو د زیاتولو مخ نیوی عملی شی دمثال په ډول په شلو یا دیرشو راتلونکو کلونو کی به د هغه نتیجی په محسوس صورت سره څرگندی شی پدی امید لرونکی قضاوت څلور لاندنی اصله مهم دی .

۱:- ملی پر مختگ، فاملی اصلاحات (پلاننگ فاملی) .

۲:- دخلکو موافقه او علاقه د تولیداتو په کنټرول کی .

۳:- د (بحروری) پر ضد د لاری توسعه .

۴:- دحقایقو موجودیت چی دختیځ خلکو د لومړی ځل دپاره د تولیداتو د کنټرول په پروگرام کی گډون وکړی دغه دی پر پورتنی څلورو اصلو باندی په لنډه ډول سره رڼا اچول کیږی .

لس کاله پخوا هند لومړنی هیوادو چی ملی پالیسی ئی د اصلاحی پروگرامونو د پروگرام د پراختیا د پاره قبول کړل د دی باوجود چی په څو لومړیو کلونو کی دغه پلان پر مختګ ونه کړ .

نن ورځ قریباً نړی نیم نفوس دهغو هیوادونو تر تسلط لاندی دی چی هغوی کورنی اصلاحی پلانونه تر لاس لاندی نیولی دی او دغه هیوادونه د ولسی چین جمهوریت، نیپال، پاکستان، هند، سیلون، ملایا، اندونیزیا څخه دی په ځینو برخو کی د دغو هیوادونو فعالیت چټك نه دی لکه سنگاپور، هانکانگ، تایوان، جنوبی کوریا، ایران، ترکیه عربی متحد جمهوریت، تونس، المغرب، کینیا، باربادوس، جمیك، او هندوراس ډیر له نورو هیوادونو څخه لکه کولمبیا، او چلی خپل ملی او حکومتی پروگرامونه په فعال ډول وړاندی بیائی او په نورو برخو کی دځنو هیوادونو اساسی فعالیتونه، په

پوهنتونونو، ملي روغتونونو او په صحي او محلي ځانګوکې جريان لري .

دغه هيوادونه عبارت دي له تايلينډ، فليپين، انډونيز يا څخه دا هم بايد ذکرشي چې حکومتي

پا لسي په يوازې سره نسي کولای چې د مؤثرو پروګرامو نو تضمين دې وکړای شي او هم دغه سبب دی

چې د يوې پا ليسې د قبول او د مؤثر کار د شروع کيدو ترمنځ تل يوه فاصله موجوده ده .

حقيقت هم دادی چې پرمخ تلونکي هيوادونه که غواړي او نه غواړي لدغو دوو مهمو موضو-

عګانو يعنې د نفوسو زيات والي او اقتصا دي پلانونه پرمختګ سره به مخامخ شي دا لدې جهته

چې د نفوسو زيا تيدل دا نکشافي

پلانونو د پاره سترمانع په دغه ډول هيوادونو کښې پيژندل شويدی .

د دغو هيوادونو ورځ په ورځ

ويښوالي او خبرتيا د ضروري پرابلم په درک کې په ډېر چټکتيا

سره صورت نيسي چې البته ددې حقيقت موجوديت د اميدونو پا نګه ده .

✡✡✡

# عمومي موافقت

## د کورنی پلانونو په پر مختګ کې

دو همه خوش بيني د نفوسو د زيا توالي په مخ نيولو کې داده چې وګړي دوړوکو کورنيو په جوړ-ولو کې خپل تياری ښکاره کړي د دغه حقيقت پيدا کيدل د تعجب وړ دی .

لدې سببه چې د تعنوی مځکو دويشلو لارښوونکي مځکې را پور ورکړی دی چې د زيا دوماشومانو د نه

زږولو په منظورحرکت په ډېرو وروسته پاتی هيوا-دونو کې په مطلوبه جريان کې قرارنه لري. او هغوی د دغه کارعلت د ژوندطرز، رسم اورواج مذهبي عقيدی او د کورنيو نظم او ترتيب

ګرځندوی چې له اوږدی کلونو څخه ئې لاس ندی خوړلی او پرخپل باقي پاته دي مګر نوی سروی چې پدې برخه کې منځته راغلې دی

د هغوی خلاف ئې ثابت کړل هغه سروی چې په شلو ډيلو ډيلو مخ پرانکشاف هيوادو

کې صورت نيولی دی ښکاره کوی چې اکثره نوی نا ميلو نه بېله کومې استثنا څخه د

ماشومانو د محدوديت غوښتونکي دي او دغه تمايل نه يوازې په ښارونو بلکې په کلو او ليرو قصباتو او هم دغه راز د باسواده او بيسوادو په منځ دغه ډول ليدل کيږي .

اکثره ښځې آرزو نه لري چې له ډېرو زيږدو او مځنيوی وکړی پدې مفهوم چې ډېری د هغوی ددؤيا دروماشومانو غوښتونکي

دي او دغه تمايل په هغو سيمو کې ليدل کيږي چې په هغه ځای کې نوی ژوند په پوره ډول سره لار نه وی پيدا کړی .

ترشا پاته جامعي له ډېرو اوږدو اول دخپلې مادی ژوند د ښه کيدو او په فکر کې دی او لې د پرمخ تللو هيوادونو دافرادو ژوند تقليد کوی چې البته د هغوی يوازنی علت اوږه او فقر دی چې د فکر

وهلو مجال ئې له هغوی څخه سلب کړيدی مګر د نيکه مرغه دغه رکود او خمو د زيات لدی څخه دوام نسي کولای لدی سببه چې اوس د کليو خلګ له يو شمير عصري وسائيلو لکه سينما، ترانزيستور راډيوی ښو ونځي او غيره برخور داره دی .

که دوی غواړي او که نه غواړی دنوی ژوند سره ئې علاقمند کوی اوس د کلو او سيدونکو يقين پيدا کړيدی چې د هغوی ماشومان په وړ کتوب کې نه مري او مدهشه

ناروغی قادری پردی ندی چې دهغوی نوی نسل دی له منځه یوسی همدغه ډول دوی متیقن دی چې زیات ماشومان وزیاتې غذا او ډېرې روزنې ته ضرورت لري همدغه راز هغوی وینی چې د ملګرو کورنیو جوړول نسبتاً هغو فامیلو ته چې دازدحامه ډکوی د ښو صفتونو او مزایاوو څښتنان دی او د ملګرو کورنیو ماشومان دخپلو والدینو مراقبت دهغوی د زړه توب او ناتوانی په ورځو کی ښه کوی .

ټولو دغو عواملو یو د بله لاسو نه سره ورکړی او ځوانی مېرمنې د عدم بهره وری اساساتو

خوش بینی کړیدی لکه څنګه چې له هغه تسهیلاتو څخه په لازمو وختو کی استفاده کوی حامله سروی ګانی دخلکو دعقیدی تغیر کول ښه ترا واضیح کوی چې

البته دغه حقیقتونه د امیدواری مایه ده په ټولو جوامعو کی خلګ د ماشومانو د شمیر د مخنیوی د پاره په خاموځایو کی له هغوی څخه استفاده کوی او علاوه پردی په ټولو ځایو کی له منو هیوادونو څخه چې منظم سرو - یسونو عدم بهره وری اوږه به اوږه اطلاعات او مؤثر وسائیلو په کار شروع کړیده چې ښې نتیجې ئې په وجود راوړی دی په هغو ځایو کی چې بی علاقه ګی لیدل کیږی .

دهغوی یوازنی علت نه درلودل د کافی سرویسونو او د تبلیغاتو عدم فعالیت دی چې نسی کولای دخلکو پاملرنه و دې کار ته وګرزوی .

باید داهم وویل شی چې دخلکو د نه علاقی مسئولیت زیات متوسطی طبقی او د کښتو رتبو مامورینو ته متوجه دی ځکه هغوی فکر کوی چې بزګران بیسواده دی او دخپل دې پرابلم پر

تشخیص قادر نه دی په داسی حال کی چې ددغی ادعا د تجربی عکس ثابت شو څرنګه چې بزګران او دهقانان په لږ بحث سره خپل تاوان او ګټه

تشخیص کولای شی او دهغه په علاج کولو پسی هڅه کوی او په دغه کار کی حتی نسبت و متوسطه طبقې ته د کښتو رتبو مامورین پیش قدمه دی .

دریم حقیقت د تخنیک پراختیا او انکشاف ته نه توسعه ده ددوو وروستیو لسو میاشتو مادی نوی لاری کشف کړیدی چې له هر حیثه محفوظه، ارزانه او مؤثری دی او دغې لاری دلومړی ځل د پاره زمینه مساعده کړل چې ځوان

مېره او مېرمن له نژدې والی څخه احساس دوری او وحشت ونه کړی .

✡✡✡

## نوی تخنیکونه

د پلاستیکی متود تطبیق په سلو کی ۵۵ یا ۶۰ ښځی د زیږیدلو د عمل څخه کاملاً مطمئن کوی او څلویښت او یا پنځه څلویښت فیصده باقی پاته په هغو ښځو

باندی شاملی دی چې یائې مېړونو مړه او یا غوښتونکی د یوه ماشوم دی، او یادا چې و نورو میتودونو ته ترجیح ورکوی .

پردې بناء شل فیصده نور ددغی لاری تحمل نه لری او یا دا چې له هغه څخه احتراز کوی د هغو مېرمنو له ډل څخه چې ددغی لاری پیروی کوی یوازی ددوی یا دری ښځی د سلو تنو په برابر کی مجبوره کیږی .

چې دیوه کال په ظرف د پلاستیك په بیا تطبیق کولو باندی اقدام کوی او دغه البته نیمی د صنایعاتو څخه دی چې په عملی کولو د بهره وری اقدام کوی .

لازیمه هدایتونه وروسته د عملی تطبیق کولو څخه صورت نیسی .

(نور بیا)

د خارجي مناٻعو څخه :                    دعبدالله ژباړه

# هغه ښځه چه مېړه ته ئې خيانت کړی دی

د کلي د کوڅې څخه چې د ځنو د کوړلو په منځ کې اوږده شوې وه، يوه ډله خلک په وحشي ډغ او عجيب ډول په حرکت کې وه . د خلکو لويه ډله کرار، کرار مخ ته تله او لکه موج په خروښ کې وه په مخ مخ کې ئې يو بدشکله او بد ډوله آس سر کښته اچولی ګوډ، ګوډ ئې ګام اخسته .

کله چې به ئې يوه ښځه پورته کول پداسې عجيب طرز به سر ښوراوه ته واغوښتل ئې چې خپل بدشکله او ر بوزد کوڅې په خاورو ننه باسي او همداسې چې ښځه به ئې ر ځای کښېښول او ږه به ئې بيره وه مځکې ته نژدې کېدل او داسې معلومېدل چې همدا اوس به پوړه مخې پر مځکه ولوېږي ديوې کوچنۍ (ځنګرې) او کاملاً لڅې ښځې چې پوره و پوه نجلۍ ته ورته وه لاسونه په تناو په ګاډۍ پسې تړلي وه .

دا ښځه په يوه عجيب ډول پر لاري تله، تا به ويل چې پر بغل مخته ځي سر ئې چې ګڼو او بېرو طلائي ويښتانو پوښلی ؤ و راپورته شوی او لږ د شاوخوا ته توږ شوی ؤ . سترګې ئې خلاصې کړې او په يوه احمقانه او ګونګې او نامفهومه ډول ئې وهغه لېرو ځايونه کتل .

د دې په کتلو کې دهيڅ انساني کتنې اثر نه ليدل کېدی . د دې ټول بدن شنو او سرو ټپلو چې ګردې او بېضوي شکل ئې درلود پوښلی ؤ د دې چپه تې هم ټپ خوړلی ؤ، او د زخم د خولې څخه وينې بهېدلې ... د وينو لښکلې د دې پرنس او کښته ترچپه زنګانه پورې سره رېښکه جوړه کړې وه . او د ښې پوړۍ ته نژدې د نسواري رنګه د دوړو او خاورو د پنډې طبقې شاوخوا ته ورکېدله .

داسې معلومېده چې يوه نرۍ او اوږده رښکې د دې ښځې د بدن څخه جلا شويده، نس ئې په يو عجب ډول پړسېدلی او ټوله سطح ئې

شين رنګه سوی وه، لکه چې ډېر عمر ئې په لندو لښتو پرنس وهلی وه . د دې ښځې ښايسته او کوچنۍ پښې په ډېر زحمت د کوڅې په خاورو او دوړو کې يو د بل پسې څکېدلې، بدن ئې کږېدی، رپېږدېدی او په هيڅ ډول معلومه نه وه چې څنګه ئې ترا اوسه لاپردې زېږدېدلو پښو

چې لکه د بدن نورې برخې ئې په شنو ټپلو پوښل شوې وې خپل ځان تکيه کړېدی او ولې د مځکې پر مخ نه لوېږي او همدغې چې لاس ئې په ګاډۍ پورې تړلي دي

پر توده او خاورو ککړه مځکه نه کشيږي ... څو پر ګاډۍ باندې يو جګ بزګر چې سپين کمېس او توره شو کلاه ئې پر سر وه (شب کلاه) ولاړ دی . د شو کولاه د لاندې

څخه ئې د سر او ويښتانو حلقې راوتلې او لکه تار ونه پرتندې باندې ئې لوېدلې دي، په يوه لاس ئې د آس جلو او په بل ئې شلاخه نيولې ده . او په يوه ټاکلي ډغ ئې يو

وار د آس پر تشې او يوه پلا د ښځې پر اوږه چې د ډېرو شلاخو خوړلو څخه ئې خپله انساني بڼه بايللې ده وهي د سور ويښته بزګر سترګې د وينو په شان سرې دي او

د يوې کين جو يانه کاميابۍ وړانګې پکښې بړېښي . ويښتانو ئې يوه روښانه ژړ رنګه سايه پيدا کړې ده، د

کمېس لستوڼي چې ترڅنګلو ئې پورته کړېدي د ده قوي په ګڼو او سرو ويښتانو پوښلي لاسونه ښکاره کوي .

خوله ئې خلاصه او د سپینو تیروغابنو څخه ډکه وه، کله، کله بزګر په یوه نیولي آواز چغې وهې :

- ښه... جادوګری! ها ! ښه، آها؟ یو ! په ګاډي پسې چې ښځه په هغه پوری تړل سوې ده، خلک لکه خروښنده څپې په حرکت کې دي او د بزګر د آواز سره چغې وهې او بزګرو شلاخو وهلو ته تشویقوي ·

کوچنیان لڅې پښې ځغلي ... کله یو له دوی څخه مخ ته ځي ، د ښځې ومخ ته خپل سر ورنژدې کړي او څه د پسخند خبری ورته کوي ·

هغه وخت دوري ډلي دخندا آواز د شلاخې په برهاري چې وهواته پوري کیږي آرام او خپه کیږي... ښځې په قهریدلو او غضبناکو ښوځې، په سترګو کې ئې دخوښۍ او رضایت ړانګې ځلیږي... سړیان همرهې دي او کله کله په لوړ آواز هغه چا ته چې

په ګاډي کې ولاړه دي پوچې او سپکې خبری کوي... هغه بیرته دویونکې وخواته راګرځي خوله ئې خلاصه پاتیږي او قاه قاه خاندي، د چلاخې واري د ښځې پر نازک او لڅ بدن راشوه کیږي.. نری او اوږده شلاخه د ښځې پر اوږو پیچل کیږي او په بغل کې ئې تکیه کیږي... هغه وخت چې بزګر ښځه لتوي شپلاخه په زور د خپل ځان وخواته راکشوي ·

ښځه د زړه څخه یوه چیغه راپورته کوي بیرته د شا و خواته ځي او پر ملا د خاورو پر مخ لویږي... د ډلې ډېر کسان د دې خواته ورځي ، پرمخ ئې کږیږي او په خپلو بد نو سره داپټوي ·

آس لږ دریږي، خو تر لږ ګړي وروسته بیا په تک سره شروع کوي او بې چاره ښځه د پخوا په شان زخمي او بې واکه په ګاډي پسې رهې کیږي ·

غم لړلي آس همدا چې کرار ګام پورته کوي خپل بد شکله سر ښوروي، ګوا کې غواړي ووايي :

- حیوان کیدل څو مره پست او ټیټ دي ځکه چې په هرشر منا که او پست کار کښې ئې اشتراک ته مجبوره کولای شي ·

خو آسمان ، د جنوبي مځکو آسمان پوره صاف او د او ریځو هیڅ لکه هم په هغه کې نه لیدل کیږي ·

لمر په ډېر سخاوت خپلې سوځوونکې او زرینې پلوشې شا و خوا ته خپر- وي ·

☆☆☆

ما د دا داستان د حق او عدالت د فرشتې د اشارت نا که تجسم او تعقیب په سبب نه دی لیکلی ·

نه ! متأسفانه چې دا کنایه او اشاره نه ده، بلکه د دې صحنې نوم مکافات دی ·

هېره خپله ښځه چې ودونه ئې خیانت کړی دی داسې تر ټې ·

دا یوه حقیقي او عادي صحنه ده چې ما د (۱۸۹۱ م) کال د جولائي پر (۱۵) د «کانه بیوکا» په کلي کې د «خرسرن» په ایالت کې پخپلو سترګو ولیده ·

(بای)



[ بزګر ]

داستان

دژوند یوواقعی اړخ

# د انسان شرافت په دنیا او نسب سره نه دی

(روکیا) ښځه یوې مور بل داسې تیرونې او په زړه پورې دوست نه لري، پلارئې په وړکتوب کې لاځنی ورك شوی دی، سره له دې چې دیوې هسکیر لی او کالی مینځونکی ښځې لورده، خو ددې، اخلاق، سپېڅلتیا او ښائست ډیر خلك



پدې راضی کړی دی چې دکاله مېرمن دی سی

دمورئې هم داهیله ده چې دیوه ښه اې سړی وکورته دی ور واده کی چې هم ئې لور پر آرامه او په ښو او ښادیو کې ټېره شي او هم دا د لور ترسائی لاندې هوسا اولدې ډیر وځفستاو ځخه په امان شي .

ځوورځی وروسته ئې روکیا د (شامك خان) ومشر زوی ته ور کړه ، ځکه چې د (شامك خان) له کوره پرله پسې مرکی ورته کېدلی .

(شامك خان) په ټوله کوڅه اې محله کی په ګوته نښانې کړی دی ، پر لمانځه او مسجد خورا ټینګ دی، لکه هانوم چې ئې دی شتمنی ئې هم هغسې ، او دسوداګرۍ دبډبه ئې په ټولو ګاونډیانو کې پرته ده، همدا سبب و چې استا د (نجلی مور) پدې راضی شول چې لوردی د

(شامك خان) ومشر زوی (کولالا) ته ور په نکاح کی د نجلی مور په استاځکه مشهوره وه چې د لېری اونیژدې کورو وماشومانو ته ئې د پښتو اوعربی کتابو سبق وایه .

واده په ډول او نغاره وپای ته ورسیدی روکیا د واده په لومړیو ورځو کښې ډیره خوشاله ده او مېړه د پاچاګلی نوم پروربانده ایښی دی، خو پسله څه عمره ئې هغه نوم او هغه نازله مېانځه ولاړ، د روکیا ژوند خورا تریخ او نه ګالونکی شو نه یوازې کولالا دمزدورۍ دلور په نامه ورته وائی :

بلکه د کورلویان او واړه ئې دمزدورۍ لور بولی او ورته وائی: چې موردې دیوې وچې ګولۍ ډوډۍ د پیدا کولو لپاره دښار ټولو کونجه په تراټ غواړی .

روکیا خواره ښځه دې چې څه دی ورته ووائی پټه خوله وی او کله چې ئې بیخی په عذاب کی نو دا هم مازی دونه ورته وائی : زه چې تاغوندې مېړه او ستاد پلار پشان خسر لرم نو خود به مې مور د نورو د کورو مزدوری کوی .

محکمه سره ده: دې پرشپه ده، له هغې ورځې راهیسې چې روکیا د (شامك خان) په کور ور ننوتلې ده پر (شامك خان) له آسمانه اورې اوړېدې، محکمې ورته راز بېرې په لږموده کې ئې پېسې

ترڅند ووتې کوڅې ئې پیدا کړل موټر سیکلان شول، شل دېرش د کانه ئې رانیول، خو (استا) خواره د پخوا پشان چا ته شیان له بازاره راوړې، دځینو پلنډې چلوې، کورونه ئې پاکوې چې ډوډۍ او کالي پیدا کې د شامك خان

تجارت دونه پراختیا پیدا کړه چې د ښار ټول واړه تجاران ئې پوروړي دي او پر هر معامله دار ئې په زرهاؤ، زرهاؤ افغانۍ ولاړې دي، خو اکثره ئې ډوبوالیان شول، دکانونه ئې خرڅ

کړل د کار سامان او که څه یو جنس ئې درلود هغه ئې پر بازار کړ تر څو چې ئې د شامك خان له پوره غاړې خلاصې شوې له ډېرو معامله دارانو څخه مې اوریدل چې مال په دونه لوړ قیمت ور باندې خرڅوي چې د دکان خرڅ نه پکښې ور لوېږي .

د شامك خان هوا د پیسو په ډېرېدلو سره بل شان ته سوه، د روکیا ناسته ده په کاله کې عار بلل کیده، نو ئې د طلاق په سرېښته پسې سو، کله چې وروکیا ته د طلاق خبر ور ورسیدی، تر ژوندئې مرګ غوره کې چاړه پلاس کې وزیر

خانې ته ولاړه او پر غاړه باندې چاړه راکش کړه. (شامك خان) ته د روکیا د خودکشۍ خبر ور-ورسیدی او په منډه ئې ځان ور ورساوه، ګورې چې په رشتیا د روکیا پلاس کې چاړه ده

او خپل شیرین ژوند و آخر ته په رسوی . ده په وچ زور چاړه دلاسه څخه وکښل، د روکیا له غاړې نه څك وېنې تو ئېږې او د ژړا په وېره خوله ئې ور ته وویل :

«راکې چاړه، ژرشي چاړه راکې نور دا ناښاد او په وېرلړلي ژوند نه غواړم، ښه دې چې

زما د مور او زما پشان د نورو مېندو د عبرت باعث وګرځم چې خپلې اولې پوازې او پوازې د دنیا د پاره په داسې کړاؤ کې ونه سپځي او پسې اضافه ئې کړل، ګناه مې څه ده، پر دروم که پرد یو اله مورته په مې هم څه غوټکې نوي ور کړې

خوله دې شیانو څخه مو هیڅ ندراپکښې لیدلې آش پدې ګناه کاره یم چې د مزدورۍ لوریم ؟ داسې نه چې زما مور له اوسه څخه مسکینه ده بلکه له هغه وخته څخه چې آسې غوښتلم د دې دغه حال ؤ».

شامك خان لدې خاطره چاړه نه وه ځینې اخستې چې د روکیا مرګ ور ته تر یخ ښکاریدی خو د خلکو له خبرو او پېغورونو څخه ډاریدی ځکه چې ټول همسایه ګان د نجلې په بده ورځ

اوددوی په ناوړه رویه او ناروا کارو خبر وه له پوې خوا د نجلۍ د خودکشۍ اقدام او له بلې خوا د (استا) د مرګي فعالیت ا ملك خان له طلاق څخه را وګرځاوه .

روکیا دد ؤ لوڼو مور شوه خو لکه در مخه په هغسې سره او رکې ژوند ګالې د مېړه ډېر

ناوړه او لعنتي کارونه ئې تل مدام لیدل خو دې بېچاره او بدبختې لدې خاطره بېغ نه کاوه چې د طلاق موضوع ورته په مخکښې پرته ده .

لټ اووهل ئې د حیوان په څېر خوړل، یوه ورځ ئې په ګڼوه په زړه کې وویشتل ځای پر ځای بېهوښه غوځاره شوه، کولالاژ روخپلې مورته ورالاکړه او په نیولې نفس ئې ورته وویل: هله ژر سه آد ګوره لورمې مړه کېړه .

کله به لېوره وهل او کله به ئې د کور په ښځوسره لتول خو بیا هم د افلکز ده پدې ټولو خواریو اووهلو قانع وه او طلاق ئې د خپل

شرافت او وجدان سپکاوی ګڼي . آخر پر دوی باندی ټولی لاری تړلی شوی ټول چالونه ئی خلاص شول. او پدې وپوهیدل چی مرګ ئي خوښ دی نه د اچی په طلاق له کوره ووځی .

یوه ورځ کولالا ورته وایی :

له ټولو ښځومی د زرو شیان اخستی دی ستا هغې همرا که چی د تجارتخانی په تجره کی ئې وساتم نبایدچی دلته ئې ځوك درڅخه

غلا نکی دا هم خپل د زرو شیان ور کوی او کولالا نامعلوم ځای ته رهی کیږی، کله چی ئې میړه ولاړ نو خسر ئې په ډیره خوشحالی او خلاصه ټنډه ورته وایی :

روکیا جانی؛ زه پوهیږم چی ته خوراډیغ ئې یو څو ورځی د مور کره ولاړه سه لږ څه به دی دمه راسته سی ، سات به دی تیر سی .

روکیا چی دا دمهربانی ډغ واو ریدی حیرانه دریانه شول چی دا څه ټکمرغه ورځ ده دخو په دا ځورلس کاله کی وماته پنځه پلا د مور د کور رخصت نه دی راکړی نو د ډیری خوشحالی په کمیسه کی نه ځائیدل، ژر ژر ئې

په لوړ پاك كالی واغوستل و ځانته او خپلو کالوته ئې هیڅ فکر نسته ژر له کوره ځنی راووتل چی نباید شاملك خان پر خپله خبره پښیمانه شی ، نه وه خبره چی دادچل او فریب ډغ او ور وستنی وداع ده، په سبا شاملك خان ددې د مور د دروازې ځنځیر وشرنګاوه او روکیا ئې طلب کړل .

شاملك خان تر روغبړ دمخه د روکیا پلاس کی یو وړوکی کاغذ ور کښېښود او دی ژر ځنی ولاړ په کاغذ کی ئې لیکلی وه :

عاقل یم، بالغ، لیونی نه یم، پر سلیم دامی چپه او ښه ده او دامی راسته او ښه ده او روکیا را باندی په ثلاثه او کلما طلاقه ده ...)

د طلاق نامی په آخره کی د (کولالا) لاس لیك و .

داچی دخط په موضوع خبره سوه ور باندی سپینه ورځ تپاره شوه، او بیهوښه ولو یده هغه دخوشحالی ورځ ئې ور پوری وپر او ماتم کړه، اوس ئې دمخ ښه الوتی او لکه یو مړی چی تازه له ګوره راوتلی وی پرداسی خیال ده .

استاته د ځان دمړولو په عوض کی درې توری وړی او برمنډی ور په پښه شوی سهار تر ماښامه درنی پلنډی پر کلکری چلوی چی د لمسیانو او نابنادی لور ټوټی وټکبی مشره لمسی په هروخت کی اناته وایی :

اناجانی زموږ وکوټی ته ورسه هغه زما زرین کالی ګان راته راوړه زما دخور او زما

دمور کالی به هم راوړی، خوانا ئې هیڅ جواب نه ورکوی او ژاړی، ځکه چی هغه بله ورځ ورغلی وه هغو درګا ورته تړلی وه او دننه ئې وسرای ته نه پریښووه .

شاملك خان د روکیا مصارف او نه ئې هغه کالی ور کوی او نه د کچنیانو د ټوټی او کالیو غم ورسره دی، (استا) خواره، په هره میاشت کی مرکه ورلیږی چی ګوندی د مرکی په روی هغه په لور پوری مربوط شیان او

مصارف ور کی خو هغه کله وایی چی دقاضی په حضور ئې درکوم او کله بیا وایی : چی پلانکی آغا صاحب او پلانکی حاجی صاحب دی راسی چی ورئی کم خوچی بیا هغه هم ورسی بیا پدې بهانه چی هغه ستاسی دشیانو لیست

په دکان کې پاته دی ځان خلاص کي.

لنډه ئې دا چې، د روکیا اوس تازو کلیدل او دربدری وشامک خان ته غوږه مېله ده او مزه پرا خلې.

روکیا چې د خپلې مور دا سترګیا او دربدری ویني له ځانه سره دا فیصله کوي، چې لوڼې داستا په پټه د (شامک خان) کره ورولې او لدې شوا خونیو څخه په دوه پلا ځان بېغمه کي، ځکه ئې د مور په پټه ورولې چې پر آنا باندي لمسېاني خوراګرانې دي، استا چې په سهار له کوره وزی (روکیا) د ډاډه نجیلانې دشامک خان کره ورولې اوپه نا قراره او سوی زړه د کور پر لور راځي.

(روکیا) د دوو ننوکچنیو لوڼو په بېلتون ډېره نا آرامه ده، کله چې ئې مینه ورولاړه سی نو دشامک خان د کور څنګه وهغه بل کور ته ورسي د جوړتیا پوښتنه ئې له ګاونډیانو څخه کړي او تش د احوال په نیولو او ددغه لاندنې لنډۍ په ویلو ځان ته تسلا ورکي.

رب دې مرګ په ناکامی کړی
چې ماشوم آزاره وی څوک
یا چې زوی له موره بېل کړی
او پلار دار بی پلاره وی څوک



د پېغلې (هما) ټولونه

## غوره وینا وی

وایی چې: وخت تیریږي مګر نه دا اشتباه ده موږ تیریږو.

[روبوسون]



کله چې انسان خندا ذوق او شوق له لاسه ورکوي د هغو مړو سره تشبیه کیږي چې ساکاږی.

[سوفوکل]



د روغتیا وې ټوی قوی حافظی ته ضرورت لری.

[کورلي]



پیسې ډېرښه نوکر او ډېر بد بادار لری.

[بیکن]



ښځه د پوهانو له نظره؛ ښځه یو وخت ذوق پیدا کوی، او دا هغه وخت دی چې عاشقه سی (لارشفوکو) که ښځه نه وای د علم په پیدایښت کې به نیمګړتیا موجوده وای او معلومه نه ده چې څرنګه به لیری سوی وای.

[د بولان]



خندا د پوهانو په نظر کې خندا له ژوند سره د جنګ ډېر ښه وسله ده.

[اناتول فرانس]



خندا تاوان نه لري مګر زیاته ګټه لري.

[دیل کارنګی]



تاسې چې کله خندا کوی د انسانیت لباس اغوندی.

[ویلیام اشتین]

ټولونکی عبدالباری «دیدار»

# داډیسن اختراعاتی

په ۱۸۴۷ کال کی وزیږدی
« ۱۸۵۹ » خپل ژوند مستقل په لاس کی واخیست
« ۱۸۶۳ » دډیلی دهرالډ په ورځپاڼه کی په کار لګیا شو
« ۱۸۶۸ » دآواز دثبتولو آله ئی اختراع کړه
« ۱۸۷۱ » د(سولز) په همکاری د لیك ماشین اختراع کړ
« ۱۸۷۷ » دآواز د ثبتولو آله ئی شیږه او ګراما فون ئی اختراع کی
« ۱۸۷۹ » دبرق څراغ ئی اختراع کړ
« ۱۸۸۰ » دبرق دینام جوړ کړ
« ۱۸۸۲ » برقی لکوموتیو اختراع کړ
« ۱۸۸۴ » دبرق دخپرولو لومړی مرکز ئی جوړ کړ
« ۱۸۸۷ » دبیسیم تلګراف داوسپنو په لاروکی رواج کړی
« ۱۸۹۱ » دپټی خولی دفلم دتهیی دستګاه ئی جوړه کړ
« ۱۹۱۴ » ویونکی سینما ایجاد کړه
« ۱۹۲۰ » دنړۍ دشیانو جوړولو لومړی کارخانه جوړه کړه
« ۱۹۳۰ » داختراعاتو اندازه و(۱۰۰۰) ته ورسیدله
« ۱۹۳۱ » مړ سو

✡✡✡

غوره معلومات

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| دانسان دزړه ضربان په یوه دقیقه کی د | | | | | ۷۰-۷۵ |
| دکوچنیانو | » | » | » | » | ۱۳۰-۱۴۰ |
| دآس | » | » | » | » | ۳۰-۴۰ |
| دسوی | » | » | » | » | ۱۵۰-۲۰۰ |
| دموږك | » | » | » | » | ۳۵۰-۴۵۰ |
| دکنیر | » | » | » | » | ۱۵۰-ضرب |

✡✡✡

دنړۍ دبحرونو ژوری نقطی داوقیانوس په بحر کی ۱۱۰۰۰ متره ده.

| | | | |
|---|---|---|---|
| اطلس | » | ۸۵۰۰ | » |
| هند | » | ۷۵۰۰ | » |
| منجمد اوقیانوس | » | ۵۰۰۰ | » |

### دنړۍ مشهور مخترعین

د تلسکوب مخترع
ګالیله ایطالوی.
د تلویزون مخترع
بوداسکا تایلندی.
د بایسکل مخترع
مکملن اسکاتلندی.
دخیاطی دڅرخ مخترع
یتمونیه فرانسوی.
دطبابت ګوشکه مخترع
لاقینه فرانسوی.
د عکاسی مخترع
درګر فرانسوی.
دچاپ ماشین مخترع
ګوتنمبرګ المانی.
د پیانو مخترع
کرستوفرای ایطالوی.
د هیلکپتر مخترع
برمان انګلیسی.
د ټانك مخترع
سو پزون انګلیسی.
د نایلون مخترع
کاروتر امریکائی.
د رادار مخترع
نیلورو یونګ امریکائی
د کاغذ مخترع
درلودسل امریکائی.
د ټیلفون مخترع
ګرام هابل امریکائی.
د لوډسپیکر مخترع
رابس کلرك امریکائی.
د بالون مخترع
مونتوهی فرانسوی.

# ته مې نه هېرېږې

که څه هم راځخه لیرې یې خو زړه مې تل تا یادوي او تا غواړي.
زما غمجن روح هر ګړی ستا په یاد الوځي او وجود مې په تپاره او تورتم کې پروت دی.
ستا ځلاندې سترګې چیرې دي چې لکه د سهار ستوري پشان روښا نتها خپره کړي او تپه تپاره او تورتم لیرې کاندي!



غرو او دښتو موږ سره جلا کړي یو که نه ته مدام زما په غېږ کې ئې
زما د هیلې او آرزو مرغه هر ګړی ستا خواته وزرونه رپوي.
څو مده په فضا کې سرګردانه الوځي او په ستومانه وزرو سره بېرته خپلې ځالې ته راګرځي او د نا امیدۍ نه په ځګیروي پیل کوي.
ستا سپین او نازنین لاسونه چیرې دي تر هغو چې د هغه غمجن زړه ناها ګیرنه کړي.



که څه هم له ما نه لیرې ئې خوشپه او ورځ مې په خیال کې ګرځې عشق دې په زړه، نوم دې په ژبه او تن دې زما په غېږ کې ځای لري، هغه هیلې چیرې دي چې ما ته به راتللې او په هر ګام به مې ځان درځخه جاراوه.



زما ګرانې محبوبې: زه پدې خوشحاله یم چې ته هم زما په یاد ئې ګرده شپه خوب نه راځي یوه هغې نیکمرغی حد چې د ویښتوب په نړۍ کې ځنې بې برخې یم د خوب په عالم کې مې برخوداره کوي.
«ټاګور»

## معذرت

څرنګه چې په تیره میاشت کې د برېښنا د دستګاه د پرچاوکید و له مخې له مشکلاتو سره مخامخ وه نو د جدي او قوس د میاشتې مجله مو په یوه وار په چاپ ورمخو نو کې راوایستل هیله ده؛ چې محترم مشترکین به زموږ دغه معذرت ومني.

KANDAHAR

MONTHLY MAGAZINE

OFFICE:-

PRESS DEPARTMENT

KANDAHAR, AFGHANISTAN

EDITOR: ZALMAI'BARAK'

(DECEMBER,JANUARY) 1968

GOVERNMENT PRESS

د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه

مسئول مدیر: زلمی (بارک)

کندهار

میاشتنی خپرونه

تاریخي، اجتماعي، علمي، ادبي

اداره: د شهیدانو واټ

د تاسیس کال ۱۳۳۹

د ۹ کال اتمه ګڼه

پر له پسې ګڼه ۹۸

کالنی بیه

په کندهار کی [۳۸] افغانۍ

د هیواد په داخل کی [۳۲]«

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

د کندهار دولتی مطبعه